# کندهار

د کندهار د اطلاعاتو او کلتور ریاست دوې میاشتنۍ خپرونه

مـــردان هغـــه دي چي همـــت ناکـــه وي
د ننګ په کار کښي چســـت و چالاک وي
کـــار چي آغـــاز کـــا انجـــام یـــې فـــرض ګڼي
په زړه هم پاک وي په خوله هم پاک وي
(خوشحال بابا)

دریم کال شپږمه ګڼه (سلواغه ـ کب) دریمه دوره پرله پسې یوویشتمه ګڼه ۱۳۸۳ ل کال




- د پښتو شعر د ډولونو تاریخچه
- د مرزا حنان بارکزي دیوان
- د افغانستان منظوم تاریخ
- قصیده یا منظومهٔ برده

د لوړ درشل غازي امان الله شاه
په واکمني کښې د ښوونو ډولونه

# قرآني مرغلري

بسم الله الرحمن الرحيم

وَ تَعَاوَنُوْا عَلَى الْبِرِّ وَالتَّقْوٰى ص

وَلاَ تَعَاوَنُوْا عَلَى الاْثْمِ وَالْعُدْوَان ص

(صورة المائدة ۲- آيت)

**ژباړه** :- او مددگاري کوئ تاسي يو تر بله په نېک کار او تقوٰی (پرهېزگاري) کښي ! او مه کوئ تاسي مددگاری يو تر بله پر گناه او پر عدوان (ظلم او تجاوز) !

**تفسير** :- که کوم سړی بالفرض د انتقام په جوش کښي راسي، او تېری وکړي، نو د هغه د ممانعت تدبير دا دی : چي د مسلمانانو جماعت دي نه يوازي له ده سره په هغه ظلم او عدوان کښي اعانت ونکړي، بلکي سر د سره لاس يو، او د نېکی او تقوٰی مظاهره دي وکړي. او د ده د زيار او بې اعتدالی مخه دي ونيسي.

---

**د پښتی د لوړي مخ شرح**:- د کندهار ولايت د دوو زړوپوښلو بازارونو څخه هغه بازار چي شابازار ته څرمه د ختيځ او لوېديځ په لور د سردار کهندل خان د لوی جومات په اړخ کښي پروت دی.

---

( دا انځور د هيواد د وتلي انځورگر ښاغلي "تپاند" د هنري پياوړتيا يوه ښکلې بېلگه ده.)

# کندهار

علمي، تاريخي، ادبي او ټولنيزه مجله



د امتياز څښتن : د اطلاعات او کلتور رياست

دربیمه دوره

دربیم کال شپږمه ګڼه _ پرله پسې يوويشتمه ګڼه

سلواغه _ کب(دلو، حوت)




مؤسس : محمد ولي خلمي

سرپرست چلونکی : عبدالمجید بابی

**کتنپلاوی :**

ډاکټر عبدالرازق پالوال، حيات الله رفيقي، عبدالکريم طالب رحيمي، فضل محمد پنهان، عبدالمجيد بابی

**کمپيوټر چاري**

مطيع الله روهيال

**بيه :**

هيواد : ۲۰ _ افغانۍ

پاکستان : ۲۵ _ کلداري

نور دباندني هيوادونه : ۱۰ امريکايي ډالره

**کلنۍ ګډون :**

هيواد : ۱۲۰ _ افغانۍ

پاکستان : ۲۰۰ _ کلداري

نور دباندني هيوادونه : ۸۰ _ امريکايي ډالره

**پته**

د کندهار د اطلاعاتو او کلتور رياست

علامه حبيبي (رح) واټ

د کندهار مجلې دفتر

تليفون : ۳۰۰۱۴۴۰

ګرځنده : ۰۷۰۳۰۰۰۲۴

## په دې ګڼه کښې

بسم الله الرحمن الرحیم

سرلیکنه

# راتلونکي پارلماني ټولټاکني

د ولسمشرۍ له پاره د ټولټاکنو د سرته رسېدو وروسته دا دی تر ډېره موده وروسته د پارلماني ټولټاکنو له پاره د لارو چارو تر غوراوي وروسته دا بهیر د خپل وروستي پړاو د سرته رسېدو تر درشله رسېدونکی دی. دغه ډول ټولټاکني په هغو ټولنو کښې چې د ولسواکۍ پر پلونو یې د ژوندانه یون پیل کړی وي ډېر زیات ارزښت لري. ځکه همدا پارلمانونه دي چې په بوده ټولنه کښې د قانون جاړنه کوي او حکومتونه د قانون پر لور ستنوي. دلته به هم سبا یا بله ورځ دا ټولټاکنې سر ته ورسېږي. خبره په دې کښې ده چې زموږ پارلمان ته به کوم کسان لار پیدا کوي! ځکه د افغانستان په ګوټ ګوټ کښې د زورواکانو او وسله والو سرېو او کړېو سکولي لا د ولس پر مړیو همغسې سخې پاته دي او آن دا چې ځيني ځيني يې د خپلو مصلحتونو له مخې قانون اهلیت او مسلک ته په بې غورانه کتلو سره لا په لورو څوکیو کښې ناست او د بحوا په ځبر مړي او جرحي کوي.

دا کسان که د اوس غوندې چې سمتونه او د ولس بېلابېلي برګنې یې د ټوپک او وسلې د شپېلو تر سیورې لاندې پټې کړي دي. سبا به د پارلمان څوکۍ هم خپلي کړي او د کومي ستونزي او خند و خنډ پرته به د پارلمان په ودانۍ کښې حلي خبرې راخرګندي کړي چې بیا به هم د هیواد هر اړخیزه چارې په ورو ورو رواني وي او په هرډ برخه کښې به همدا آس او همدا کاسه وي.

که ولس وغواړي د دې ډول کسانو د منګولو څخه خپلي سپېڅلي او کرېدلي مرۍ وژغوري نو ورته ور ده چې د پارلماني ټولټاکنو له پاره د همدا اوس څخه خانونه ویښ کړي او د داسې خبراکت څخه کار واخلي چې سبا یې بیا د هېښتیا په تیارو کښې ډوبه نه وي. د ولس هر غړی باید خپل د خان. د خپلو خلکو او خپل هیواد دوستان او دښمنان وپېژني د هغه حا نه کنه خپل د نوم لیکنې کارت وکاروي چې د هغوی سره د خلکو او هیواد خوږ وي. هغوی ته د خپلي سیمې ستونزې او د خلکو کړاوونه څرګند وي او هغوی د پارلمان په غونډو کښې د هیواد په ګټه داسې پرېکړې وکړي چې سبا ولس په ووپارېږي.

که ولس د ولایتي او پارلماني ټولټاکنو له پاره په ملي ښېګڼو سمبال کسان وپېژني او د هغوی ملاتړ وکړي او هغوی د بري تر پولو ورسوي نو د دوی غوره سوي کسان به دولتي او حکومتي چارې د خپل ماموریت په پېر کښې د قانونیت په تله کښې په خبراکت او هوښیارتیا سره وتلي. حکومت او د حکومت چارواکي به وڅارې او په ملي چارو کښې به د کرتیا څخه د حکومت ټول اړاکين وژغوري کوم څه چې د ولس د وېار سبب ګرځېده هغه به مې او په څه کښې چې د ولس او هیواد سکنا بعسي وي هغه به څنډوي.

که ځښ همداسې وکړه د پارلمان دواړه اړخه ولسي جرګه او مشرانو جرګه به د هیواد د اوسیو ورانو وېجاړو شيو او ورځو له پاره د قانون نور په ځلېدو کړي او که خدای ﷻ کول د هیواد په بېلابېلو هغو برخو کښې چې لا د لاقانونۍ په تېغونو غاړې ځیرېږي. د بې عدالتۍ په څپېړو مخونه وهل کېږي. عزتونه لوټېږي. د ولس او حکومت ښتمني تر ګندو کېږي او د قومونو حقوقو ته لا د تعصب په پېلوخې اورونه اچول کېږي. بیا به د حق او عدالت له هسکه ورته ستوري په سلامي کېږي او د دغو سکو او کرغېړنو کړونو شیطانان به د پښتني او افغاني برم په بسم الله د ډګره په تښتېدو کېږي

انشاء الله

**په همدې هیله**

**اداره**

۳

پوهاند علامه حبيبي

د روښانيانو سبک په دې مميزاتو له نورو څخه بيلېږي

١ د دې ډلې شاعرانو د شعر ډېر اقسام وويل لکه غزل، قطعه، رباعي. او اوږدې اوږدې قصيدې چې په دغه ډول يې د پښتو د شعر لمن ارته کړه او په ستاينه، وير، او نورو خپلو مسلکي ابحاثو کښې يې اوږدې قصيدې وويلې

٢ د عرفان او تصوف او لاهوتي دنيا اصطلاحات يې په ژبه را گډ کړه. او د تصوف پر گرانو خبرو يې اشعار ولیکل. لکه د وحدت الوجود او شهود مسئلې. د تصوف روحي خوندونه. او الهام د ماوراء المادة فلسفه او نور... چې دا ټوله دوی پخپلو غزلو او قصيدو کښې راوړه. او په شعر کښې يې داخل کړه

٣ په تشبيه او استعاره او شاعرانه تلازماتو کښې د پخوانو له سبک څخه چې سيچ سپېڅلي او ساده و راووته خپل اشعار يې د صنعت او بداعت په گېڼه ښکلي کړه د بديع او بيان د فنونو مراعات يې په ښه ډول وکړ

هغه شاعران چې د دې سبک په خپرولو کښې يې خدمت کړی او خواږه اشعار يې ويلي دي دادي

**١ مخلص**

د دولت په قول دا شاعر د پير روښان معاصر او د ده ملگری و. او علي محمد نوميدی. دولت وايي چې مخلص د روښان پير او خليفه و. او دولت د مخلص ډيري مرثيې ويلي دي په شاعري کښي هم دولت دی ستايي او وايي

بې ميرزا، بې ارزاني بې مخلص ياره
بل شاعر برابر نه دی پښتون ستايو

د مخلص يو بل ملگری او معاصر شاعر هم دی ستايي او د ده د شعر خوږوالی مني

ای ميرزا له پاکو پاکو وينا وايي
د مخلص کلام خالص دی معتبر سو

د دې دوو تنو معاصرينو له لوړو ستاينو څخه ښکاره ده چې مخلص خوږ او جذاب کلام درلود خکه چې ميرزا او دولت تر (١٠٠٠ هـ) وروسته ژوندي وو. نو د مخلص د ژوند مهال هم په دغو وختوکي ټاکلي سواي اخوند درويزه وايي چې ملا علي د ارزاني خويشکي د ورونو څخه و. دوی له هنده راغله او د بايزيد ملگري سو (١)

مستر راورټي د خپل پښتو گرامر په دېباجه کي د قاسم علي افريدي د يوې قصيدې په حواله د مخلص ذکر کوي د دې شعر په خصوص کي موږ اوس نور څه معلومات نه لرو او نه يې د وينا نمونه راڅخه سته

**٢ ارزاني**

دا شاعر هم د روښان پير له لويو ملگرو څخه دی اخوند درويزه وايي چې دی د خيرالبيان په ليکلوکي هم برخه لري دوی درې ورونه وو په قوم خويشکي چې يو ملا ارزاني او

بـل ملاعمـر او دربـیـم ملاعلـي نومېـدی، ارزانـي چـي يـو تیزفکره او فصیح شاعر و، نو په پښتـو او پارسـو او عربي او هندي يې شعرونه وويل، او ده يو بـل کتـاب هم وليکـی چي (چهاررما) (۲) نوميږي وروسته نو ارزاني له ده څخه بېل سو هند ته ولاړ او د ده دوه ورونه ورسره پاته سوه. (۳)

د ارزاني معاصر شاعر دولت هم په هغه بیت کي چي دمخه ذکر سو د ده ادبي مقام ښيي خوشحال خان د شاعرانه افتخار په مقام کښي وايي:

" مـــخره مي ارزاني خويشكي زمندكړ"

رحمان بابا هم ارزاني داسي يادوي:

د ميرزا د ارزاني دعوه به پرېکا
قدردان د شاعرانو رحمان راغی

له دغـو تصريحاتو څخه ځرګندیږي چي د خوشحال او رحمـان پـه عصر کښـي د ارزانـي اشـعار مشهور و ځکه چي ارزاني د بايزيد معاصـر و، نـو د ده ژونـدون د (۱۰۰۰ هـ) پـه شـاوخوا کـي تخمـين کـولای سـو، مـستر راورټـي هم د قاسم علي افريدي د يوې قصيدې په حواله د ارزاني ذکر کوي (۴) وارمـــــتېر هـم ارزانــي د پښتـــو پـــه زړو شـــاعرانو کښـــي شميري (۵)

**۳ عبدالله**

بـل د روښانيـانو معاصـر عبـدالله دی، چـي د اخونـد درويـزه پـه قـول د ملارکـن الـدين زوی و، دا عبـدالله د پښتـو ژبي شاعر او ورور يې ملا نعمت الله هم ځيني رسايل تـاليف کړيـدي (۶)، دا شـاعر فقـط مـوږ د اخونـد درويـزه لـه بيانـه پېژنو.

**۴ ميرزاخان انصاري**

**۵ دولت لواڼی**

**۶ واصل**

خوشحال دا شاعر د دولت سره يوځای ذکر کوي لکه چي وايي:

که دولت و که واصل و که دا نور وو
په خبرو مي د هر يوه ريشخندکړ

د خوشحال خان له دې تصريحه ښکاره ده چي د واصل اشعار هم د روښانيانو د دورې دي د ميرزا حنان کندهاري متاخر شاعر له ذکر کولو څخه هم دا معلومه ده چي د واصل اشعار مشهور وو، لکه چي وايي:

ښه شيرين الفاظ ويلي دي "واصل"

**ج د ملاالف سبک**

د زرم هجـري کـال پـه شـاوخواکښي چـي د روښانيـانو سبک د افغانستان په مشرقي خوا او د اټک په غاړو کښي شهرت درلـود د کندهار پـه خوا کښـي هم يو سبک و، چي اثار يې لږ - لږ پاته دي، دا ډول موږ د ملاالف سبک بولو، ځکه چي تر ده دمخه موږ ته په دغه سبک کښي سابق سړی نه دی معلوم. د ملاالف سبک دغه خواص او مزايا لري:

۱. د معنـا او مضمون لـه خـوا د خیرالبيـان سـبک تـه ورتـه دی، يعنـي ټولـه دينـي او اخلاقـي مضـامين دي مګـر د تحقيـق لـه پلـوه ترهغـه سـبک دمخـه دی، او ټولـه دينـي منقـولات بيـانوي، او مطلـب يـې دا دی چـي دينـي او اخلاقي اصلاح وسي، نه مقابله او جګړه.
۲. هغه اشعار چي په دې سبک کښي لرو لويـه برخـه يې مثنوي ده چي ديني مضامين يې له عربي څخه منظوماً ترجمه کړي او د اهل السنه عقايد يې شرح کړي دي.
۳. په دې سبک کښي شعري صنايع او بدايع لږ دي په بي تکلفه او ساده بيان مطالب په شعر کښي راوړه سوي او استعارات او نور شاعرانه تکلفات نه لري.
۴. بحور يې لنډ او پرې دي او ويونکی ژر ژر مطلب ځني اخيستلای سي.
۵. په دې ډول ډېر پښتو درسي کتابونه کښل سوي او اوس د پښتونخوا په ډېرو برخو کښي په عمومي تدريس ويل کيږي، او خلک يې په لوستلو د دين ابتدايي اعمال او عقايد زده کولای سي.

د ملاالف سبک په پښتونخوا کښـي ډېر خپـور سوی او د عمومي استفادې کتب پکښـي نظم سويدي د دې سبک مشهور رجال دا دي چي د اشعارو نمونې او سوانح يې په اصل کتاب کښي ولولئ:

۱. ملاالف هوتک
۲. ملاشېرمحمدهوتک
۳. شېرمحمدننګرهاري
۴. ملاعبدالرشيد قريشي
۵. سعادت خان
۶. جان محمد
۷. ملافرح الدين
۸. محقق کندهاري
۹. ميا فقيرالله جلال آبادي د عبدالرحمان زوی چي د جلال آباد د حصارک دی لوئ او مشهور عارف و، په (۱۱۵۰ هـ) ژونـدی او ډېـر تاليفونـه لـري پـه (۱۱۹۵ هـ) پـه ښکارپور کښي وفات او هورې ښخ دی په پښتو يې د

(فوايد فقيرالله) کتاب منظوم کړيدی مگر د کلام نمونه يې زموږ څخه نسته

۱۰ ملا زبردست کاکړ

۱۱ مولوي عبدالمجيد کاکړ

۱۲ مرادعلي کاموي

۱۳ دوست محمد ختېک

۱۴ ملا عبدالباقي کاکړ

**د د خوشحال خان سبک او مکتب**

تر هجري زرم کال وروسته د پښتو په ادب کښي يو لوی نهضت مومو، چي لومړی معلم او مؤسس يې نوميالی او ننگيالی سردار مرحوم خوشحال خان دی او دی د پښتو پلار بللای سو

خوشحال خان د پښتو د ادب پر اسمان لمر او دی د خپل ډېرمشهور سبک مؤسس دی ده په پښتوکښي يو لوی مکتب پرانستلی دی چي ډېر نوميالي شاگردان ځني راوتلي دي

د خوشحال خان سبک په پښتو ادب کښي ډېر شهرت او مقبوليت وموند. او د پښتو ادب د ده په مکتب کښي له هري خوا ښشېړ سو، نو ځکه موږ د خوشحال خان ادبي سبک د پښتو په ټولو سبکونو کښي يو غوره ډول او مهم سبک گڼو. چي د ادبي فنونو مراعات ډېر پکښي سوي او اشعار يې هم خواږه او هم د صنعت په گڼه ښکلي دي

د خوشحال د سبک خواص دادي:

۱ دې سبک د پښتو شعر ډېر ارت کی علاوه پر غزل، مثنوي، قصيده، رباعي چي تر خوشحال خان دمخه ويل سوي وه. ده نور ټوله د عربي او پارسو د شعر اقسام په پښتو وويل. او ځني ابتکارونه يې هم د شعر په اقساموکښي وکړه

۲ په دې سبک کښي هر ډول صوفيانه، اخلاقي، فلسفي، فکاهي مضامين او مدح، رثاء، محاکات، اجتماعي خبري سته. چي ملي عواطف او مزايا هم تلقين کوي او يو ښه حاوي و ارت سبک دی

۳ په دې سبک کښي د پښتو او پښتنوالي، او د پښتني اخلاقو او ملي احساساتو روزنه هم سته او د خوشحال خان خپله اشعار د ملي جذباتو ډک دي

۴ په دې سبک کښي اوږدې اوږدې قصيدې پر يوه موضوع چي شاعر غوره کړي وي ويل سويدي، چي هره قصيده يو بېل اجتماعي يا تبليغي يا تاريخي مضمون دي

۵ په دې سبک کښي بديعي صنايع او تلازمات او تشبيهات گډ سوه، مگر دومره دی چي شاعرانو يې د اشعارو ساده گي او سلاست تر صنعت او تکلف قربان نه کي او د طبيعت له لمني څخه نه وواته، او ډيري پېچلي ويناوي يې په اشعارو کښي رانه وړي

۶ حماسي احساسات پخپله خوشحال خان. په دې سبک کښي راوړه او شاگردانو يې لږ - لږ پېروي وکړه

۷ تنقيد او هجو هم په دې سبک کښي سته، او پښتو شاعرانو مخصوصاً د مغولو استعمار طلبانو ډېره هجو او غندنه کړې ده، دوی د مغلو ټول شيان وغندل او پخپلو اشعارو کښي يې يوه نوې کلمه جوړه کړه چي هغه نو (مغولواله) ده دا کلمه د دې سبک شاعرانو د پښتونوالي په مقابل کښي راوړه، پښتونواله يعني د ټولو ښو انساني صفاتو جامعيت، مغولواله، بالعکس د ټولو بدو او ناوړو صفاتو درلوول. له مغلو څخه دغه تره او نفرت، او د دوی غندنه، د دې سبک روح دی، او ډيرو شاعرانو له دوی څخه شکوې او نارې کړيدي، او مغل يې غندلي دي

۸ د خوشحال خان د مکتب په اشعارو کښي ډېر حکم او نصائح او فلسفي مطالب سته. چي د ژوندون نري نري اسرار او دقايق پکښي ويل سويدي

۹ د ادبي قيمت له پلوه دا سبک تر ټولو جامع او ښه دی هم يې د معنا خوا قوي او هم ادبي او شعري خوا بده نه ده

۱۰ په تخيل کښي هم دا سبک ډير ښه دی. خورا لوړ او د نزاکته ډک شاعرانه تخيلات پکښي سته پخپله خوشحال خان او نور شاگردان يې د تخيل قهرمانان او پياوړي دي، او په تخيل کښي يې ابتکارونه کړيدي، دوی له خپلو ښو قريحو څخه خورا نوي نزي مضامين په تخيل کښي راوړي . او خپل سبک يې د لوړ او ښه او نازک تخيل په گڼه ښشېړ او ښکلي کړيدي، مگر په طبيعي رنگ

دا و د خوشحال خان د ادبي سبک خصوصيات او ښېگڼي چي لوړ مو راوړه، مگر خوشحال خان پخپله يوازي لوړ او ښه شاعر نه و، بلکي ده خپل زامن او کورنی هم پر ادب روزلې او د شعر او وينا په مکتب کښي يې پاللې وه

نو ځکه تر ده وروسته د ده زامن او لمسي او نوره کورنی ټوله نوميالي ادباء سوه او د پښتو شعر يې ډېر لوړ کړ

په پښتو کښي دا دریمه ادبي او علمي کورنۍ ده چي د دریمه او اخوند درویزه تر کورنۍ وروسته راغله، او علاوه پر هغو مزایاوو او ښېګڼو چي دې دوو کورنیو درلودې د خوشحال خان کورنۍ او ادبي مکتب حماسي او بزمي او رزمي اشعار هم پخپل سبک کښي وویل او له دې جهته نو دوی د پښتو شعر بشپړ کړ

د خوشحال خان سوانح او نوره شرحه په دې کتاب کښي د دې په برخه کښي وګورئ. د ده د کورنۍ نور شاعران او ادبي پیروان هم ډېر دي چي موږ یې لاندي نومونه اخلو

د دې مکتب او سبک ارکان

۱ عبدالقادرخان ختک
۲ اشرف خان هجري
۳ صدرخان ختک
۴ سکندرخان ختک
۵ عیسی اخندزاده
۶ خواجه محمد بنګښ
۷ معزالله
۸ عثمان
۹ عبدل
۱۰ اشرف
۱۱ فاضل
۱۲ ابراهیم
۱۳ فضیل
۱۴ حسین
۱۵ مهین
۱۶ عصام
۱۷ ابوالقاسم
۱۸ فتح علي
۱۹ علیم
۲۰ علي خان ختک

## ه د رحمان بابا سبک

د خوشحال خان د ژوندون په زمانه کښي د پښتو د ادب پر اسمان یو بل ستوری هم وځلېدی د پېښوره څخه بنحه میله ګس خواته د بهادر د کلي په یوه بېوزلې کورنۍ کښي یو هلک وزېږېدی، چي عبدالرحمن یې باله دا سړی مهمند سړېنی و. هیوز وایي چي ابراهیم زي مهمند و (۷) خو عبدالرحمان چي لوی سو د پښتو ژبي یو لوی او نومیالی او تر ټولو مشهور شاعر سو ده یو مکتب په پښتو ادب کښي جوړ کړ او یو نوی سبک یې راویست او پخپل روحانیت او ادبي او معنوي قوت داسي خلکو ومنلی چي (رحمان بابا) یې بولي

رحمان تر (۱۰۵۰ ه) وروسته دنیا ته راغلی او د خپل ښکلي شعر او ادب په زور یې د (بابا) نوم وګاټه، چي بېله "احمدشاه بابا" په پښتو کښي د بل چا نصیب نه سو

د رحمان بابا مکتب او ادبي سبک ډېر جامع سبک دي. د انسان له فطرته ترجماني کوي، او د زړه له کومي وینا راباسي او اشعار یې د پښتو او پښتنوالي څخه هم نه دي وتلي

رحمان بابا د اخلاقو او اجتماعیاتو له پلوه پر پښتني عنعناتو سم شعر ووایه، د تصوف او عرفان په دنیا کښي یې عملي خوا خوښه کړه د عشق خبري یې په تودو احساساتو او سوځوونکو جذباتو وکړې

نو د رحمان بابا سبک د پښتو شعر ځیني هغه خواوي چي تر اوسه لانېمګړي وې بشپړي کړې او هره موضوع یې په خورا ګړندیتوب او مروچتوب وویل د ده سبک دغه ښېګني او خواص لري

۱ په دې سبک کښي شاعر د روح الهام مني د مادې سره یې ډېر سر وکار نه دی. له هغې دنیا څخه خبري کوي چي له دې خاکي نړۍ څخه پرته بله دنیا ده او د معنوي فیوضاتو منبع هم دغه ځای دی

۲ په دې سبک کښي شاعر له مادي کثافاتو څخه لیري کیږي او هلته ځي چي صلح کُل دی. او د دې خاورینې نړۍ غوغا او ښورماښور پکښي نسته شاعران یې د دنیا پر بدو تنقید کوي او ځان یې له ککړو او کړکېچنو څخه پاکوي

۳ په اداء او د اداء په تصویر او نورو ښېګڼو کښي دا سبک خورا سپېڅلی اوسلیس دی ابهام ښه نه ګڼي د شعر الفاظ او عبارات ساده او سپېڅلي غوره کوي

۴ غزلیات، قصاید، رباعیات، تخمیس او د شعر نور ټوله اقسام په سپېڅلي ډول وایي. او ډېر له میني او اخلاقو څخه رغیږي

۵ د عشق او میني په دنیا کښي هم د واقعیت خوا ته ځي او د خیال لړ تابع کیږي

۶ د دې سبک شاعر عشق او الهام د ژوندون مدار ګڼي یقین او ایمان پر عقلیت باندي خوښوي

رحمان بابا چي د دې سبک لومړی استاد او ښوونکی دی پخپله هم دغسي سړي و، روحاني ژوندون یې درلود، چي تر ده وروسته ډېرو شاعرانو د ده پیروي وکړه او دا لوړ

سړی یې په استادي ومانه او د ده سبک یې غوره کی، او مشهور د مکتب شاگردان یې دغه دي:

د دی سبک مشهور شاعران دا دی:

۱ عبدالرحیم هوتک
۲ احمدشاه بابا
۳ خوږ گدا
۴ عبدالعظیم سواتي
۵ میانعیم متي زي
۶ ملا جمعه بارکزي
۷ عبدالنبي بیټني
۸ شیرمحمد هوتک
۹ مطیع الله پیرخیل
۱۰ قاسم علي اپریدي
۱۱ یونس
۱۲ غفور
۱۳ صدیق
۱۴ شهنواز
۱۵ حافظ د الپوري

**و د پیرمحمد سبک**

د پښتنو د علم غوښتونکي او ادب روزونکي پاچا اعلیحضرت احمدشاه بابا په زمانه کښې د پښتوادب یو بل نهضت شروع سو او د پښتونخوا په غرو او ښاروکښې داسي شاعران پیدا سوه چې د پښتو ادب ته یې له هري خوا تازه گي وبخښله او ډېر نوي سبکونه یې منځته راوستل چې یو مشهور سبک یې (د پیرمحمد سبک) دی.

پیرمحمد اصلاً د ژوب کاکړ و، چې د خپل عصر علوم یې په کندهار کښې ولوستل او د احمدشاه بابا د دربار ملا سو او د شهزاده سلیمان په معلمي وټاکل سو، پیرمحمد په پښتنو کي عشقي اشعار ډېر وویل. او د یوه نوي او مخصوص سبک استاد سو. پخپلو شعرونو کښې یې تاوده د عشق احساسات او جذبات پټ کړه، او د زړه څخه یې وینا راوایستله. د بیان اسلوب یې خوږا روڼ او سپېڅلي و.

د پیر محمد سبک دغه خواص او ممیزات درلوده.

۱ د عشق خوږا نري احساسات پکښې سته، د دې سبک د شاعر کار له زړه سره دی، لکه رحمان بابا لسان الغیب نه دی چې د عالم قدس څخه وږغیږي، او نه وچ کلک ناسوتي دی بلکي د هغو تودو احساساتو څخه الهام اخلي چې آرت او صنعت زېږوي

۲ په دې مکتب کي تشبیهات او استعارات طبیعي رنگ لري، د ظاهري ښکلیتوب او مادي جمال بیان کوي او په دې ښېگڼه کښې د خوشحال خان سبک ته ورته دی.

۳ عبارات او الفاظ یې پرېولي او روان دی. ژبه یې جذابه ده.

۴ د معاني او احساساتو په تجسم او تصویر کښې د ژبي خاص بلاغت استعمالوي. مطلب سپېڅلي او روښانه راوړي، تعقید او ابهام نه خوښوي.

۵ د اخلاقو تلقین او مواعظه یې لاهوتي نه ده، حتی المقدور د اجتماع او انساني معاشرت له خنده نه وزي.

د پیرمحمد سبک په دغوممیزاتو او خواصو د خوشحال خان او رحمان بابا د سبکونو تر منځ یو فاصل خط دی، او دا سبک د آرت له پلوه غوره او ډېر ښه دی.

د پیرمحمد د مکتب او سبک شاگردان او پیروان چې موږ ته معلوم دي دا دي:

۱ شمس الدین کاکړ
۲ گل محمد نورزی
۳ سردارمهردل خان مشرقي

د دې شاعرانو احوال او وینا په اصل کتاب کښې وگوري.

**ز د حمید سبک**

تر خوشحال خان او رحمان بابا وروسته د پښتور ښې مځکي یو بل خورا لوی او مروج شاعر پښتو ته ورکی، چې یو بل نوی سبک یې جوړ کړ، او د پښتو ادب یې له بلي خوا تکمیل او بشپړ کړ، دا سړی عبدالحمید ماشوخېل مهمند و، چې تر (۱۱۰۰ ه) وروسته پیدا سو.

حمید ښکلي اشعار او د خونده ډک اثار په پښتو کښې پرېښووه، ده مبتکره او بداعت خوښوونکې قریحه درلوده، او د بل چا پیروي یې ونکړه، بلکي پخپله یې یو نوی سبک جوړ کړ. او نور خلک یې خپلي پیروۍ ته راوغوښته.

حمید په دې خپله هیله کښې ښه بریمن سو، او خپل سبک یې ښه جوړ او خپور کړ، ده د پارسو ادب ولوست، او هندي سبک چې د ده په زمانه کښې په پارسو لوړتیا او عروج ته رسېدلی و، ښې سره وسپنلی، وروسته نو پخپله هم پکښې داخل سو، او د پښتو شعر یې پر هندي سبک واړاوه، او هغه خصایص یې پکښې راوړه، چې د پارسو شعر هندي سبک درلوده.

نو د حمید سبک ته موږ د پښتو هندي سبک ویلای سو، لکه پر پارسو چې دې سبک د مغولو په زمانه کښې

اغیزې وکړې. او خورا رواج او مقبول سو، دغسې هم په پښتوکښې د حمید په زیار دې سبک رواج وموند.

**خصایص**

۱ په دې سبک د خیالپروری (Idialism) زور دی، تر طبیعت وتلي خیالات او افکار په شعر کښې راوړي. او هغه نرۍ او باریکې معناوې چې د جسم او مادې څخه وتلې دي اداء کوي. او په شاعرانه تخیل کښې یې په داسې تشبیهاتو او استعاراتو راولي چې نادري دي او د جسم او مادې په دنیا کښې نه ځائیږي.

۲ اغراق او مبالغه د دې سبک له خصایصو څخه دي. که یو شاعر وغواړي چې یو شي کوچني کي، نو به یې دومره کوچني کي چې لیدل کیږي به نه، او که یې لوړوي نو په نړۍ کښې به نه سي ځای.

۳ شاعر یې د ادبي تلازماتو مراعات ډیر کوي. مثل او ممثل لازم او ملزوم. ناتج او منتج ډیر سره راوړي، مثلاً که هنداره راوړي گرز ورسره راخي او که سبز یاد کي نو به ضرور قمري ورسره ملگرې وي.

۴ څکه چې نادر استعارات او تشبیهات شاعرانو په دې سبک کښې راوړه. نو یې ډیر پارسو اصطلاحات او کلمات هم په ژبه راگډ کړه، او د پارسو جملو او مصطلحاتوڅخه یې کار واخیست مگر دا خو چنداني ښه کار نه و.

۵ د حمید سبک هغه د بیان پاکیزه گي او سپېڅلتوب چې خوشحال خان او پیرمحمد او رحمان درلود بایلود، او ډیرې پېچلې خبرې یې راوړې، حمید د پښتو شعر د تخیل او ایډیالیزم له پلوه ډیر لوړ کړ، چې تر ده وروسته نورو شاعرانو هم دا سبک وروزلی، او دوی حمید خپل استاد وباله. او د (موشگاف) لقب یې ورکړ.

د حمید د سبک پیروان

۱ کاظم خان شیدا
۲ محمدي چمکني
۳ میرزاحنان کندهاری
۴ حاجي عبدالله محزون
۵ کاظم
۶ کامگار
۷ صمد
۸ ملامحمد اکرم چې د (۱۲۰۰ هـ) په شاوخوا کي په کندهار کي اوسېدی او د محزون استاد وُ د حمید په سبک کښې یې ویل وکړه.

**ح  د قلندر سبک:**

د پښتو له میرو څخه د (۱۱۰۰ هـ) په شاوخوا کښې قلندر نومي یو سړي راووتی چې د اپریدو څخه و، دا سړی د حمید ماشوخېل معاصر او په غزلیاتو کښې د هغه د سبک شاگرد او پېرو دی.

مگر قلندر له خانه د پښتو په شعر کښې یو نوی سبک هم راوایست، چې د عشق او میني سوزان او تاوده او د جوشه ډک احساسات یې په ځلوریز شعر کښې وویل، او د ده اشعار داسې اغېزه ناکه او د اثره ډک دی چې ساری نه لري.

د قلندر سبک دغه خصایص لري:

۱. قلندر د خپل خوږمن زړه مجروح احساسات پخپلو نارو او غلبلوکښې په ښه ډول راوستلي دي. چې د سړي زړه ورسوځي، او داسې اغېزه لري لکه شاعر چې د خپل خوږمن زړه ټوټې پخپلو اشعارو کښې پټې کړې وي، په پښتو شعر کښې د ده په راز تند جذبات او احساسات چا نه دي ښکاره کړي.

۲. قلندر د خپلو ویرجنو نارو او غلبلو لپاره یو مخصوص سبک او بحر ټاکلی دی، چې په ملي سوزان لحن وایه سي او هم پر عروضي اصولو سم دي. داسې اشعار ځلور مصرۍ لري لکه رباعي. قلندر یو مطلب په یوه رباعي شعر کښې ځایوي، او د مقصد د ویلو او اداء کولو راز یې داسې زړه وړونکي او بې تکلیفه او اغیزه ناکه دی، چې سړی یې په اوریدلو ډیر متاثره کیږي، مخصوصاً که په ملي لحن وویل سي.

په دې دوو ممیزاتو زمونږ قلندر له نورو څخه بېل سبک لري او نور چا یې هم لږ پېروي کړېده ځکه چې په دغو خواصو شعر ویل د اوره ډک زړه غواړي او هغه لږ سته!

یو بل سړی د قلندر د سبک په تقلید موافق سویدی د کندهار ملاحسن اسحق زی دی چې دې سړي هم یو ډېر سوزونکی او د اوره ډک عشق درلود او د میني په لېونتوب کښې یې د قلندر په ډول ځیني اغیزه من او دردناک اشعار وویل، او ټوله د زړه اور او خوږ یې پخپلو نارو او غلبلو کښې ښکاره کړ.

**ط  د جنگیالیو او ننگیالیو سبک:**

د پښتو ادب یو مهم ټوک هغه حماسي او د ننگیالیتوب اشعار دي چې شعراء د ملي زړه ورتوب او د مېړنو د مېړاني احساسات پکښې مجسم کوي، که څه هم د پښتو په ټولو سبکونو کي د پخوا تر اوسه دغه ملي روح

ژوندی دی او په هر عصر کي او هر سبک کي د حماست او ننګیالیتوب احساسات څرګند سوي دي !

که موږ د پښتو شعر په دېوانو او اثارو کښي وګرځو یا د ملي ادب پاني واړوو په هر ځای کښي د شاعرانو ښه ښه حماسي اشعار لیدلای سوای او دا هغه ملي ناري او اثار دي چي د پښتنو زلمي یې خورا ګران ګڼي او په ټولو پښتونخوا کښي خاص اهمیت لري خو بیا هم زموږ په ملي شاعرانو کښي یوه خاصه ډله هم سته چي دوی حماسي بدلي او جنګي او رزمي اشعار خالص ویلي دي، او خالص حماسي شعرونه ویل د دوی سبک دی.

دې شاعرانو د خپل مېړو او جنګي خلکو او ملي پهلوانانو د مېړاني قیصې نظم کړیدي، او د خپل ملت جنګي او حماسي مردانه احساسات یې ښه څرګندکړي، او پخپلو اشعارو کښي راکښلي دي.

د دې سبک مشاهیر دغه:

١. برهان خان
٢. مسعودګل
٣. نورالدین
۴. زاهدخان
۵. عزیز خان
۶. سپینه
٧. ملاله

**ی. د قصه کوونکو سبک**

د پښتو د ادب یو بل خورا مهم ټوک قصه ده، او په پښتو کښي قصصي اشعار هم زښت شهرت لري، او هري خواته د قصه کوونکو شاعرانو سبک ډېر مقبول دی.

په پښتو ادب کښي موږ دوه ډوله قصي لرو، لومړي هغه عشقي قصې دي چي له پخوانو زمانو څخه په پښتو کي سته. او دوه تنه عاشق او معشوق چي د قصې پهلوانان وي قصه د دوی په نامه شهرت مومي، لکه د ادم خان او درخو نقل. د توردلي او شاهو، یا د مؤمن او شیرینو نقل یا نور.

دا قصې په ملي ادب کښي مهم موقع لري، او د پښتنو پیسکولوژي او روحیات رانښیي، مګر زموږ مقصد دلته دغه قصي او نقلونه نه دي، بلکه داسي شعراء هم سته، چي د عروضي اشعارو په ډول یې اوږدي اوږدي قصې منظومي کړي، او د خان لپاره یې قصه کول، او قصصي شعر سبک ټاکلي دی

علاوه پر دغه ځیني شعراء هم سته، چي په شعر کښي د بل سبک تابع دي، مګر ځیني قصې یې هم نظم کړیدي، چي دغه ډول شعراء نو موږ قصه کوونکي نه سو بللای. د پښتو قصه کوونکي شاعران عموماً په مثنوي خپلي قصې نظم کوي، چي ځای ځای غزل یا قصیده هم لري، بحرونه یې عموماً اوږده دي، کله کله خفیف هم پکښي وینو، خو دلته دا خبره هم سته چي هر شاعر د قصې ځیني مخصوص مزایا لري، مثلاً یو سړی یې بزمي خوا ښه تصویر کولای سي او ځیني نور یې بیا رزمي او جنګي وقایع ښه بیانوي.

<u>د پښتو قصه لیکونکي شعراء دا دي:</u>

١. باي خان:
چي د بنیر و، او د لیلی مجنون قصه یې په پښتو نظم کړېده (٨) دی د (١١٠٠هـ) په شاوخوا کي اوسېدی عبدالرحیم هوتک دی د خوشحال خان سره په شاعري کښي سم ګڼي. (٩).

٢. میاعمر چمکني: د (١٢٠٠ هـ) په حدودو کښي ژوندی و، د پېښور او کرم په خواوو کښي اوسېدی، او لوی روحاني سړی و، د پښتنو د اقوامو شجره یې منظومه کړېده(١٠) او ځیني نور مناجاتونه هم لري چي د لندن په موزیم کښي سته

٣. امام الدین: چي د جمجه په نامه یې ځیني قصاید نظم کړیدي چي په عوامو کښي ډېر شهرت لري او راورټي یې ذکر کوي (١١).

۴. غلام محمد: د راورټي په قول په (١٧) عیسوي پېړۍ کښي ژوندی و، او یوه افسانه یې د سیف الملوک په نوم نظم کړه (١٢) او معراجنامه یې او د والضحی منظوم تفسیر یې ولیکل.

۵. ارسلا: چي په (١٣٠٣ هـ) کښي یې د فتح خان قصه نظم کړېده او ډارمستټر یې ذکر کوي (١٣) پر دغو علاوه نور قصه لیکوونکي شاعران دغه دي

۶. فیاض
٧. مسعود د عبدالله زوی
٨. احمد اخوندخېل
٩. رحمت داوي
١٠. ملااحمد جان
١١. رحمت
١٢. ملانعمت الله
١٣. ملااحمد
١۴. نور

د عروضو شاعرانو د سبک او ډلو بحث دلته تمام سو، اوس به نو مختصراً دعوامو پر سبک هم لږ لږ وږغیږو.

۳ **د عوامو ډله**

د عوامو په سبک کښي د پښتو ډېر اشعار ويل سوي او زموږ د ادب غوره پانګي په دغه سبک کښي سته چي دا سبک موږ له دې جهته د عوامو سبک ګڼو چي نسبت و نورو سبکونو ته د ملت د عامو طبقاتو په منځ کي ډېر شهرت لري، او په پښتونخوا کښي مروج دی.

دغه سبک د ادبي ارزښت له پلوه سچه ملي دی او د عوامو د احساساتو هنداره ده.

لکه دمخه چي مو وويل د دې سبک تدقيق او د ملي اشعارو او سندرو حصر او پلټنه بېل کتاب غواړي مګر په دغه کتاب کښي هم د هغو ملي شاعرانو نمونه او اثار چي زموږ لاسته راغله د دوی د لنډو اشعارو سره راوړه سويدي.

د عوامو په سبک کښي د ملي اشعارو ګرده، اقسام لکه لنډۍ، د اتڼ ناري، سپرۍ بدلي، د نقلو ناري او نور... شامل دي، چي هم يې هجايي وزنونه بېل او هم يې مضامين ممتاز دي.

لکه د پخوانو په سبک کښي چي مو ولېدل، د هغه عصر ډېر اشعار په ملي لهجه دي او مخصوص اوزان او الحان لري، چي اوس يې نمونې زموږ د عوامو په سبک کښي راپاته دي، او دغه د عوامو سبکونه دي، چي زموږ د زاړه ادب او پخوانو نيکونو د ادب رنګ او ډول ښه راښکاره کوي.

<u>د عوامو سبک دا خواص لري:</u>

۱. اشعار يې ټوله هجايي بحور او آهنګ لري. او دا بحور او اوزان خاص ملي دي د پردو تقليد پکښي نسته.
۲. هره ترانه او سندره ځانته بېل اهنګ لري، چي زموږ د ملي موسيقۍ اساسونه هم دغه اهنګونه دي، او په خورا سنګين او متين ږغ ويل کيږي، چي د ملت صلابت، او د ملي روح لوړتيا او کلک توب ښکاره کوي، او اورېدونکي يې د ويونکي له ږغ او اهنګ څخه د ده عالجنابي او ملي حميت معلومولای سي.
۳. په موضوع کښي هم د اشعارو ارته لمن لري. د عشقي او حماسي او اخلاقي خوا څخه خورا ښه مضامين پکښي سته غندنه ستاينه او فکاهيات هم لري. کله کله اوږدې رزمي او حماسي قصې پکښي راوړي او خپل ملي نوميالي مېړونه پکښي ستايي، لکه د احمدشاه، غازي محمداکبر، غازي محمد ايوب، ميرعلم، صاحبجان او موسي خان او نورو توريالیو بدلي چي د ملي پهلوانانو ستاينې دي.
۴. د دې ملي اشعارو مضامين او اهنګ دواړه خواږه دي، چي خارجي پوهان يې هم خوښوي دارمستېټر فرانسوی مستشرق ډېري دغه ملي بدلي ټولي کړيدي. راوړتي ليکي چي دغه بدلي په ګرځنده موسيقۍ سره ويل کيږي او د حرارته ډکي دي. چي ماته د خپل وطن ملي سندري راپيادوي، او ډېري مي په ښېښورکښي ليکلي دي (۱۴).
۵. دغه اشعار له هري خوا په اغېزه او اثر او جذابيت کښي هم ډېر ښه مهيج دي او انسان بديعي احساسات ورخوځوي، او زړونو ته شورماشور ورکوي. او اورېدونکي دې ته اړ باسي چي اتڼ او غورځنګ ورسره وکړي.

په دې خواصو او ښېګڼو زموږ ملي اشعار ډېر غوره دي ښايي چي زموږ د نوي ادب اساس هم دغه اشعار وي چي هم ادبي خوا او هم غنايي او د موسيقۍ ښېګني لري. اوس موږ د ملي سبک او د عوامو د ډلي د مشهور شاعرانو نمونه اخلو:

۱. کمال
۲. محمدجي
۳. ميرا
۴. عبدالله
۵. خدايرحم
۶. عبدالودود
۷. ملاميران
۸. خواجه محمد
۹. صديق اخندزاده
۱۰. سليم
۱۱. عبدالرحمان
۱۲. محمدايوب
۱۳. طالب
۱۴. توکل
۱۵. سردارمهردل خان
۱۶. شيرمحمد
۱۷. برخوردار
۱۸. فيض الله
۱۹. سيدکمال
۲۰. ملازاهد

٢١. محمد یار صاحبزاده
٢٢. محمد دین
٢٣. نوروز

**د دې مبحث لنډه:**

له پخوا زمانو څخه د پښتو شعر خاص ملي اوزان او سبک درلوده، دا دوره تر اسلام دمخه شروع کېږي بیا تر هجري دريمې پېړۍ یعنې د غزنويانو تر عصره رارسیږي.

موږ ته د دغې دريمې پېړۍ اشعار لاسته راغي، او زموږ نیکونو په داسې سبک شعرونه ویلي دي چې افکار یې ساده دي او خاص ملي وزنونه او اهنګونه لري. د اشعارو مضامين حماسي، اخلاقي، موعظه او ملي دي، تر دوی وروسته د خیرالبیان سبک پیدا سویدی چې شعر یې لکه قدماء نه پوره ملي دی، او نه پر عروضو برابر دی، د دې ادبي تحول او انتقال په زمانه کښې دوې مشهوري کورنۍ راغلې او دا سبک یې روزلی دی.

لومړي کورنۍ د پیرروښان بایزید ده.

دوهمه کورنۍ د اخوند درویزه ده.

د خیرالبیان سبک له (٩٠٠ تر ١٠٠٠ هـ) پورې روزل سویدی. د شعر مضامين یې دیني، تبلیغي، اخلاقي او فلسفي دي.

وروسته د هجري زرم کال په شاوخوا کښې د عروضي شعرانو ډله راغله چې پخوانو یې عشقي، اخلاقي، حماسي مضامين وويل، بیا نو د روښانیانو ډلې اخلاقي، عرفاني، فلسفي او د تصوف ګران مضامين په شعر کښې راوړه.

په دغو وختو کښې ملا الف د کندهار په سیمه کښې یو د عروضو ابتدایي سبک راوایست او دیني، اخلاقي مضامين او مواعظ یې پکښې نظم کړه، دغسې هم د زرم هجري کال په حدودو کښې خوشحال خان او بیا تر ده وروسته رحمان بابا او حمید او پیرمحمد او قلندر نوي نوي سبکونه او د شعر ډولونه رواج کړه او شعري صنایع او ادبي بدایع یې په پښتو کښې وپالل. او د شعر ټوله اقسام او ډول ډول مضامين یې وويل، چې اخلاق، تصوف، د ماوراء الماده فلسفه، مادي فلسفه، او نور ټوله افکار او تخیلات یې په ښه ډول پخیله ژبه کې ځای کړه.

پر دغو ډولونو علاوه د ټنګیالیو او حماسه ویونکو قصه کوونکو شاعرانو سبکونه هم په پښتو کښې سته، او د عوامو ډله خاص ملي اشعار لري.

په دې ډول د پښتو شعر د کیف او کم، او رشاقت او سلاست له خوا ډېر ښه دی او د معنا او لفظ په متانت او بنسګڼو کښې ډېر لوړ خي، چې د نورو ژبو د هر راز اشعارو سره ساري ګڼل کیږي، او په ادبي ارزښت کښې تر هیڅ ژبې پاته نه دی. (١٥)



**لمن لیکونه:**


١. تذکره الابرار والاشرار ص ١٤٩
٢. کذا فی الاصل
٣. تذکره الابرار ولاشرار ص ١٤٩
٤. د پښتو ګرامر مقدمه.
٥. د پښتونخوا د شعر هار و بهار
٦. تذکره الابرار ص ١٧٠.
٧. د کلید افغاني مقدمه
٨. د راورټي د ګرامر مقدمه
٩. د عبدالرحیم قلمي دېوان
١٠. تاریخ صولت افغاني
١١. د راورټي د ګرامر مقدمه
١٢. د راورټي د ګرامر مقدمه
١٣. د پښتونخوا د شعر هار و بهار
١٤. د پښتو ګرامر مقدمه.
١٥. د پښتانه شعراء د لومړي ټوک مقدمه




✿ څوک چې د خپل بخت نه راضي وي هغه غښتلي وي.
✿ د پوهانو لویي په دې کې ده چې پخپله پوهه نه مغروریږي.
✿ باوشاهان او لويان تر لاس لاندې خلکو ته ضرورت لري.
✿ څوک چې د خپلو کړو وړو نه خوشحاله وي هغه به نه شرمنده کیږي.
✿ د نه رضاییتوب څخه بلاستره بدمرغي نسته.
سمه لار بشکاره او آسانه وه، خو خلك په کړو وړو لارو کې لالهانده وي.
✿ څوك چې پوهیږي هغه څه نه وایي، خو څوك چې نه پوهیږي هغه هر څه وایي.
✿ هر څومره چې خلك هوښیاریږي، هومره د حکومت کول ستونزمن کیږي.
✿ چیرته چې قانون نه وي هلته جنایتونه زیاتیږي.

ډاکټر عبدالرازق پالوال

# د اشرف هجري بند او تبعيد

لانجه : تاسي به پوهېږئ چي د اشرف هجري او شعر بيان ئې په پټه خزانه کښي کښلئ سوئ نه دئ . په وروستو کښي يو شمېر منکران پيدا سوي دي چي يو هم له همدغه اسيته څخه پټه خزانه نه مني . دوی وايي چي د شاعرانو دغه تذکره ورېښنه (اصلي) نه، خو لا لوی استاد پوهاند عبدالحي حبيبي په تانده ځواني کښي کښلې ده . اوس به د دغه يوه شاعر او د ده د شعر او نورو اړونده موضوعاتو له مخې څخه وګورو چي معترض د دې ورتيا لري چي پر دغه تاريخي ادبي کتاب باندي حقاني ليکنه وکړای سي؟

له يتې خزانې څخه لومړنی منکر، حبيب الرحمان قلندر، ځلور لانجې رامنځ ته کړي دي :

۱ . افضل جيو له نيکه خوشحال څخه د مغولو پر ضد باندي مرسته او ملګرتيا غوښته . (له خزانې سره اړه نه لري)

۲ . اشرف هجري په بيجاپور کښي بندي نه وُ لکه څنګه چي نور داسي وايي . (له خزانې سره اړه نه لري)

۳ . د رحمان بابا اشعار د خوشحال خټک تر مړيني وروسته و اشرف ته رسېدلي دي .

۴ . په پټه خزانه کښي چي د خوشحال او قادر بيانونه کښل سوي دي، ولي ئې د دوی د زوی او ورور، اشرف هجري سوانح او شعر کښلي نه دي؟

لاندي به وګورو چي په دغي اوسنی ليکني کښي د قلندر وړاندنی ځلور سره ادعاوي څنګه ثابتېږي؟ د حقاني قضاوت له پاره به د انصاف تله او تالې ستاسي لوستونکو په لاس درکم .

(د ۲،۵ شمېرونو له مخي څخه دغه ليکنه د بوبه خزانه کتاب د پنځم فصل دوهم باب دئ) .

**(۱) له نمسي سره د نيکه ملګرتيا :**

قلندر وايي افضل غوښتل چي نيکه ئې د مغولو پر ضد باندي د ده ملا تړلې وي .

لومړی به زه د اشرف جيو پر بند باندي څه وکاږم څو د پيښي مغز راښکاره سوئ وي . دی د خوشحال په غياب کښي د خټکو مشر وُ . کله چي خوشحال بندي وُ، زوی ئې اشرف د ده پر ځای د مغولو په خدمت کښي دربدلئ او د قوم مشر سوئ وُ . څنګه چي تر آزادي وروسته ئې پلار له مغولو سره په جنګ وُ، او دی د خپلي قبيلې په چوپړ جنګېدئ، نو د کابل صوبه دار له اشرف جيو څخه تعهد واخيست، يا به اشرف داسي پلمه کوله، چي نور به خوشحال د خپل مشرتابه په سيمه کښي نه پرېږدي . پر دغه باندي پلار له زويه څخه خوابدئ څه چي لا سره وجنګېدل . څکه چي خوشحال د خټکو مشرتوب د خان باله .

څنګه چي خوشحال او اشرف سره مرور څه لا مخالفان ول، او يوه له بله سره لښکري جنګ هم کړئ وُ، نو خوشحال هم خود کوښښ کاوه چي خپل هغه زوی ئې د قوم مشر کړئ وي چي د ده په خوله او پر خوا وي . هر هغه زوی چي ئې د قوم سرغنه وي، د سرکار ملازمت به هم و هغه ته ورکول کيږي . اشرف چي د پلار د دغه نيت او فعاليت احساس او درک کړئ وُ، دی و دې ته اړ وتلئ وُ چي له پلاره سره مناسبات سم کي، مانا "دوې هندوانې په يوه لاس کښي واخلي" .

په دغه ترڅ کښي بنګښو پاڅون کړئ وُ، او امیر خان صوبه دار و ترین خان سرلښکر ته ماموریت ورکړئ وُ چي دوی وټکوي. او هم ئې و اشرف جیو ته امر کړئ وُ چي له ترین خان سره مرسته وکي. کله چي اشرف جیو و دغي چارې ته پر لاري وُ، دء له خپله پلاره سره د پخولاینې هڅه وکړه، او خپل زوی، افضل جیو، ئې په مرکه ورواستاوء.

ښایېدنه: په ټینګه سره حدس وهم چي خوشحال و اشرف ته داسې پیغام ور استولئ وُ چي په جنګ کښي د بنګښو ملاتړ وکې، او مغول ورسره ووهي. نو ته تر دغه کار وروسته بیا له ما سره لیدلای سې. اشرف د پرانګ او پاڼ تر منځ واقع سوئ وُ.

داسي ایسي چي اشرف په جنګ کښي پخ وُ، نه تېرء. یعني هم ئې ترین خان غاوجن کړئ وُ، او هم د بنګښو ښه په سوي نه وه. ځکه نو د اشرف دواړي خطا سوې. خوشحال د مشرتابه شال و افضل جیو ته ور پر سر کړ، او امیر خان صوبه دار بیا اشرف تر جنګ لنډ وروسته په ۱۰۹۲ هق کښي په چم و چل و چال سره ونیواو و زندان ته ئې واستاوء. خود به هغه هم د دء له دې هڅې ځخه هم خبر سوئ وُ چي له پلاره سره پخولا کېدل غواړي.

په دغه ترڅ کښي چي اشرف جیو د خوشحال او امیر خان صوبه دار تر منځ وسواسي ټالونه وهل. یعنې په نوساني حالت کښي وُ، ورور ئې بهرام خان و صوبه دار ته ور دوست کړی وُ چي هغه هم د دء ځای ورکړ. (نور وینئ تاریخ مرصع)

لکه پلار ئې خوشحال، زوی ئې اشرف هم ځان بې ګناه بولي چي پر ناحقه بندي سوئ وُ. لکه پلار ئې دی هم له اورنګ زیبه ځخه سر ټکوي لکه هغه چي دوی بندیان کړل ول. د هر یوء بند په نهایت کښي د صوبه دار کار وُ، نه د اورنګ شاه:

ځو پر تخت باندي قائم دئ اورنګ شاه
په نوکري دي هیڅ ښتون نه کا ویساه

خو هغه د دوی دواړو په بند کښي لاس نه لارء. دوی هر یو د خپل زمان صوبه دار بندیان کړي ول، او آزادي ئې هم په هغه پوري اړه لرله، نه په اورنګ زیب پوري.

ښایېدنه: ښایي د وړاندني بیت پر اساس باندي قلندر کښلي وي چي افضل د نیکه مرسته له مغولو ځخه د انتقام اخیستني له پاره غوښته. دء په دغه اړوند داسي کښلي دي:

"دا ځرګنده خبره ده چي افضل خان د خوشحال بابا نه صرف د مغولو پر خلاف د ملګرتیا امید لرلو ځکه چي افضل خان د پلار بدل صرف د مغولو نه اخستل غښتل"، (قلندر _ فی المیزان ۲۴۳ مخ).

اوس به ووینو چي واقعیت له ځه قراره ځخه وُ. د مغولو دفترونه خو چا برملا کړي نه دي چي د اشرف په دوسیه کښي به ئې ځو توري پاڼي لرلې. خو د دء خپل زوی افضل جیو ئې ځلور عامله یاد کړي دي چي هر یو ئې د دء په بند کښي اغېزمن ښکاري:

(۱) آزاد ګګیاڼي و امیر خان صوبه دار ته پورته سوئ وُ او ورسره په جنګ وُ چي پر دوآبه باندي ئې غوټه وهلې وه. اشرف د خیښی او خپلوی له مخي ځخه د آزاد ګګیاڼي و کورنۍ ته په "سرای" کښي ځای (پناه) ورکړی وُ.

(۲) کله چي امیر خان له پېښوره ځخه و کابل ته پر لاري وُ، له اشرف جیو ځخه ئې غوښتنه وکړه چي له خپلي رسالې (سپارء ځواک) سره ئې بدرګه وکي. خو دء ایله ورکړې وه. دغه نه ملګرتیا به ئې هم ښایي له دې اسیته ځخه وه چي دوی سره پوهېدل.

(۳) بهرام ورور ئې د دء و حکومتي موقف ته لېوال وُ، او خود به هم د ورور په نړوءنه کښي فعال وُ چي افضل جیو هم له دغه اسیته ځخه له دء سره اخستي و.

(۴) امیر خان و اشرف جیو ته ویلي ول چي له ترین خان سره د بنګښو په جنګ کښي مرسته وکي، خو دء ځان دربغولئ وُ (له تاریخ مرصع ځخه اخستنه د هیوادمل ۱۹۹۳: ۲۸۰)

**د اشرف تجرید:**

بله لانجه دا ده چي اشرف جیو خو د نسبتاً نژدې ګوالیار په کلا کښي بندي وُ، نو ئې د لیري دکن د بیجاپور و کلا ته ولي او کله واستاوء؟

لومړني معترض کښلي دي چي "د تاریخ مرصع نه دا پته هم نه لګي چي اشرف خان هجري له ګوالیاره کله بیجاپور ته تللئ یا استولئ شوئ وُ"، (قلندر _ فی المیزان ۲۴۶ مخ).

ښاغلي زلمي هیوادمل کښلي دي چي کله اورنګزیب (عالمګیر) د بیجاپور کلا په ۱۰۹۷ ه ق کښي ونیوله، اشرف ئې له نورو بندیانو سره له ګوالیاره ځخه و هغه زندان ته واستاوء (هیوادمل ۱۹۹۳: ۲۸۰).

ښایېدء نه: ودي سي، خو نو ولي؟ افضل جیو په تاریخ مرصع کښي یو اړونده بیان لري. دء کښلي دي چي د

اشرف جیو تر نیوني وروسته، البته د افضل جیو په ټینګار لا تهدید سره. بهرام په دغه اړوند یوه قبیلوي مرکه د پلار، خوشحال، له خوا څخه دائره کړله، څو خپل موږنۍ لا نور هم پسي ټینګ کړئ وي، او هغې مرکې هم داسي پرېکړه وکړه

"خان جنت مکان (اشرف) چي قید دئ مغل دي ئې خلاص کا، د بادشاه په حضور دي وسي، منصب دي ورکا. دا زمان بهرام لکه مغل د { ی } وړاندي کړئ دئ هم دی دي وسي. خاني ئې په نامه د بهرام کړه" (اخستنه د قلندر _ فی المیزان ۲۴۲).

بهرام په دغه مرکه کښي حاضر وُ. او پرېکړه ئې هم د دء په ګټه سوې ده. دی ئې د مغولو په تائید سره د قوم سرغنه کړئ دئ او "محال { د } ترې بولاق ئې هم پر بهرام وسپارل. د بهرام زوی ئې و لاچي ته واستاوء" (تاریخ مرصع ۴۹۴ مخ، اخستنه د قلندر _ فی المیزان ۲۴۲ مخ).

ساېدنه: د وړاندنی مرکې پرېکړه به په سلو کښي اویا پخپله په خوشحال پوري اړه لرله. نوره مانا ئې دا ده چي خوشحال د بهرام په سرغنه توب خوښ وُ، نه د اشرف. یو عامل به ئې دا و چي هغه زمان دء (خوشحال) دغه مقام د ځان له پاره غوښتئ، خو په وروسته کښي ئې سبک او امید دواړه ختلي ول. ښایي دء به نور شخصي دلایل هم لرل. بل دا چي بهرام له خوشحال سره غاړه وړله، او دی ئې خوښ ساتلئ وُ.

لومړۍ ښایوءنه: خوشحال تر مرکې وروسته و افضل جیو ته ورغلئ وُ، او دی ئې د مرکې له پرېکړو څخه نغوړولئ وُ. افضل جیو خواشینئ سوئ او نظام پور ته ځني تللئ وُ. خوشحال و نظام پور ته پسي ورغلئ وُ. هورې نمسي له نیکه سره په دې هیله پاته سوئ و، څو ګوندي له بهرام څخه د پلار په انتقام اخستنه کښي به مرسته ورسره وکي، نه له مغولو څخه په انتقام اخستنه کښي لکه چي قلندر داسي پوهېدلئ دئ. خو خوشحال د خپل زوی بهرام پر ضد باندي د نمسي ملاتړ کولای نه سوای. خود به ئې بله اند ښننه لرله.

دوهمه ښایوءنه: افضل جیو په یوازي سر سره له لښوري څخه سپاره واستول او "پادشاهي لار ئې ووهله". به دغي سیمي کښي د امنیت مسئول بهرام وُ. څکه نو "بهرام خوابي کاروائي وکړه خو شکست ئې وخوړ" (قلندر _ فی المیزان ۲۴۳ مخ).

اوس نو دغه لاروهنه د بهرام پر ضد وه که د مغولو؟ تر دغي ماتي وروسته، وایي چي بهرام د غوریه خیلو او یوسفزیو مرکه و خوشحال خان ته ورلېږلي وه، او خوشحال خپل نمسی افضل جیو هم ورغوښتئ وُ. ګورئ چي خوشحال څنګه وېناوي نغاړي:

"تمامي جرګې خان ته ووئیل چي هغه (بهرام) د تا زوی دا دي نمسی. اختیار دتا که سرداري { و } دء ته ورکوې که { ئې و } هغه ته. خان علیین مکان ورته په ځواب کښي ووئیل چي دما آزردګي دا ساعت د دواړو پر سرداري نه ده. په هغه جرګي { کښي } چي څه مقرر شوي وو، د بهرام سره چي خان جنت نشان (اشرف خان) چي په قید دئ خلاص دي شي، دا په کوم سبب په ګوالیار { کلا } کښي محبوس شو. بویه چي لکه قرارداد شوی دئ د ګوالیاره دي کوز شي، په منصب دي سرفراز شي . . . ما خان ته عرض وکړ چي دا ساعت دما فکر او سن و سال تقاضا د سرداری نه کا، دا هومره تلاش چي { مي } محض د پلار د خلاصئ دئ، کنه د بهرام نه سرداري اخستل د خدای تعالی په کرم ما وته اسان دی. هر وخت چي کمرېندي وکړم انشاء الله ترې به ئې واخلم. هر چي تا دا معرکه (د کمرو میلي جرګه) وکړه، ډېر دي ښه وکړه. زء هم پرې راضي شوم" (اخستنه د قلندر _ فی المیزان ۲۴۳).

و دغه ټکي ته هم باید ځیر سوي یاست چي قلندر د افضل جیو پر "معرکه" باندي څه نوټ لیکلئ نه دئ چي دغه لغت ولي داسي کښنته سوئ دئ، او د کومي ژبي لغت دئ؟ دغسي هم "جرګه" څنګه لغت دئ چي دء و معرکې (مرکې) ته په لېندیو کښي کښلئ دئ؟

ښاېدءنه: د وړاندنی مرکې د پرېکړو راپور بهرام سم سیده و امیر خان صوبه دار ته ورلېږلئ دئ، او له داسي تجویزه سره چي که اشرف یا د دء خواخوږي د مرکزي حکومت له صلاحیت لرونکو کسانو سره لار جوړه کي، او د مرکې پرېکړه ور وړاندي کي، اشرف به سپین سوئ وي او موږ به ئې توران کړي یو. نو دی باید له مرکزه څخه دونده لیري سي څونده چي ممکن وي.

دریمه ښایوءنه: د دغو مرکو او د اړونده پېښو د دنګلو په پایلامه کښي اشرف د بهرام د مخالفانه فعالیت او د امیر خان میر میران په نغوړوءنه، هڅوءنه، او اقدام سره له ګوالیار څخه د دکن و بیجاپور ته لېږء سوئ دئ څو دی نه ګانه آزاد سوئ نه وي او په اګره کښي ئې له حکومتي

سرغنه وٌ سره ليدلي نه وي او هم ئې منصب ور کړئ نه وي، لکه څنګه چې مرکې داسي پرېکړه کړې وه. نو ښه ئې دا ګڼله چې له اګرې څخه ډېر ليرې کړء سوئ وي. په دغه ډول سره که به ئې د خواخوږو ارتباط له اشرف سره پرې کړئ نه وٌ، کم کړئ ئې ډېر وٌ. که به پخوا په مياشتو کښې خوک ورتلل، وروسته په کال کښې. په دغه ډول سره ئې اشرف د سيمې له حالاتو څخه بې خبره ساتلئ وٌ.

ښايېدءنه: افضل جيو په دې ښه پوهېدئ چې پلار ئې د بهرام په ټونګ سره بندي سوئ وٌ، او هم به د دء په وساطت سره آزادېږي. خو د اشرف آزادي مانا د بهرام ايستنه. که به اشرف جيو دغه کار کاوء يا به ئې نه کاوء نو افضل جيو چيري پرېښاوء، او خوشحال او بهرام هم دواړء په دې ښه پوهېدل. څکه نو خوشحال له بهرامه سره د نمسي روغه غوښته چې هغه نه ورسره کوله. په دغه اړوند بله درېيمه مرکه د بهرام په غوښتني سره جوړه سوې وه او هم به ئې مشران غړي د بهرام خواخوږي ول. دوی هم د خود د خوشحال ملګرتيا لرله چې افضل جيو داسي پيغام وراستولئ وٌ:

"زه {. . . و دې} معرکه {مرکې ته} نه درځم. که بهرام اتفاق دما د پلار په خاصي کا دا وسواس دي نه کا چې زء به {و} مغل ته ورشم، او که تاسي نور خپل روزګار سره لرئ، زء د روزګار ګډون نه کوم _ رخصت مي کړل. خان عليين مکان له هغه {هغې} جرګې بيا راغلئ نظام پورته. {و} ماته ئې وفرمائيل چې څو نصو روپۍ د دې ماهه {له دې مياشتې} موږ دتا د خرڅ د {له} پاره د {له} بهرام سره مقرري کړې. ته خپل سړي واستوه خيرآباد ته چې اخلي ئې. ما ورته ووې چې دما دتا قردار سره هومره وٌ چې څو ته دماد او د بهرام سره په اتفاق راضي شوی نه يې. اوس چې تا او دء سره اتفاق وکړ، دما په اتفاق هم {له} بهرام سره راضي شوی، {نو} اوس دما {او} دتا سره جدائي ده _ هذا فراق بيني و بينک" (اخستنه د قلندر _ في الميزان ۲۴۴ مخ).

افضل جيو د دې احساس او درک کړئ نه دئ چې د سرغنه خوشحال او بهرام تر منځ اتفاق له لويه سره څخه لا وٌ، او هم د دء په ټونګ سره بهرام و دغه مقام ته رسېدلئ وٌ. اوس دي نو لوستونکي پخپله قضاوت وکي چې د افضل او بهرام مرکې او جنګ د مغولو پر ضد ول که د دوی خپل منځي دښمني وه. هو د مغول پر منصب باندي.

د اخستلي عبارت دوهمه جمله په صراحت سره دا ښووي چې د اشرف بند او آزادي له بهرامه سره اړه لرله، او هم پر دغه کار باندي اشرف او افضل دواړو له بهرامه سره اخستې وه. د افضل هيله له نيکه او له وروستني مرکې څخه تر سره نه سوه. يوه وروستنی د ناچاری چاره پاته وه، او بس. دا هغه څه وه چې خوشحال ئې په زغرده سره مخنيوی کاوء.

ښايېدءنه: تر وړاندنی مرکې وروسته افضل جيو د ۱۱۰۰ ه په دوبي کښې مخ د کابل پر خوا سپور سوئ او سيده او اميرخان صوبه دار ته ورغلئ او د مغولو ملازمت ئې منلئ وٌ. د دء غروری دا وٌ چې په دغه کار سره ئې پلار آزاد کړي، او بهرام ئې له ملازمته څخه ايستلئ وي. اوس دي نو د سد خاوندان قضاوت کي چې افضل د سرغنه خوشحال ملګرتيا له څانه سره د مغولو پر ضد باندي غوښته که د تړء (بهرام) پر ضد باندي؟ نيکه ئې افضل جيو د مغولو له ملازمت څخه منع کاوء، او له بهرام سره ئې پخولا کاوء چې دی په دغو هڅو کښې ناکام سو او نمسي ئې ملازمت واخيست.

څنګه چې بهرام ځای پر ځای پاته سوئ وٌ، نو پېښه دلالت پر دې باندي کوي چې صوبه دار ئې دغه غوښتنه مشروطه منلې وه. دا چې اشرف هجري هم له زندانه څخه ايسته سوئ نه دئ، نو ئې مانا دا ده چې افضل خان ئې د بيروکراسۍ په مراحلو سره هيله من کړئ و. څکه چې پلار ئې لږ تر لږه دوه کاله لا نور هم په زندان کښې پاته سوئ وٌ. دی په ۱۰۹۲ کښې بندي سوئ وٌ، او په ۱۱۰۲ ه کښې لا بندي وٌ چې په يوء بيت کښې ئې داسي ولي دي، دی دغه زمان په بېجاپور کښې وٌ، او بيت ئې بندي ښووي:

نن آغاز د لسم کال دئ باور وکه
چې په بند کښې زهير بېږم بې ګناه

ښايېدءنه: غمجن خوشحال په خپل مرام کښې غوڅ پڅ ناکام سوئ وٌ، او خود به ئې د افضل له مغولي ملازمته سره سم له سختيا او ګرومه څخه زهره چاودلې وه. کله چې افضل د ۱۱۰۰ ه ق په مني کښې له کابله څخه و جلال آباد ته ورسېدئ، د نيکه له مړيني څخه خبر سو. ښايي چې خوشحال دې و کابل ته د افضل تر تګ څه يوه مياشتې وروسته زهره چاودئ سوئ و، دا خو اوس داسي ثابتېږي چې افضل د مغولو و ملازمت ته تر ملا رغښتئ، خو خوشحال ئې مخنيوی کاوء. نو افضل له مغولو څخه انتقام نه اخستی، بل لا له خپل تړء بهرام څخه چې دی په دغه هوډ

کېښي بالآخره تر ډېره انده پوري بريالی کيږي هم، او له مغولي ملازمته څخه ئې باسي، چې دا بيا بېله موضوع ده .

ښايېدءنه : څوک به وايي چې که خوشحال له مغولو سره د مخالفت له اسيته څخه نه غوښتل چې نمسی ئې، افضل، د مغولو په چوپړ کېښي درېدلئ وي نو بيا ئې د زوی له دغه کاره سره ولي مخالفت نه کاوء؟ دی به د افضل د مغولي ملازمت څکه مخالف ؤ څو نه گانه ئې بهرام له ملازمته ايستلئ نه وي چې وروسته هم داسي پېښيږي او خپل پلار ئې له بنده څخه ايستلئ نه وي . له دغه کاره څخه به دء ښايي دا ډېره لرله چې کورنی شخړه به په کورني جنگ، مرگ او ژوبلي سره اووښتې وي . داسي يو جنگ تر مخه هم د افضل او بهرام تر منځ پېښ سوئ ؤ چې بهرام ماته خوړلې وه . بل عامل ئې لا خود هم دا ؤ چې بهرام د خوشحال د لاس سړی ؤ، خو اشرف نه ؤ. څکه ئې نو د قوم مشرتوب پر بهرام پېرزو ؤ، نه پر اشرف باندي . اشرف هم له پلاره سره جنگېدلئ ؤ. دا چې د خوشحال خپل زامن په اداره کېښي نه ول، د دء لويه کمزورتيا ښووي . دغي کمزورتيا دی د پښتنو په مشرتابه کېښي هم د مغولو پر ضد هوډ کېښي ناکام کړئ دئ .

له وړاندني بيانه څخه څرگنده سوه چې دغه په ريښه او پايه کېښي کورنی شخړه وه . په دوهم پوړ کېښي صوبه دار نه غوښتل چې له کورنی شخړي څخه و دء ته سيمه ئيزه شخړه جوړه سوې وي . نو تر څو چې د دء بهرام په کار ؤ، اشرف بايد له ميدان او له بازی څخه وتلئ، او لا ليري کړء سوئ وای، او وو هم . څو خواخوږو ئې د ټولني حالات او معلومات وررسولي نه وي، او دء هم خپل زوی او نور يو راز و بل راز هڅولي نه وي .

## د اشرف بند او آزادي په بېجاپور کېښي :

سره له دې چې قلندر په بيجاپور کېښي اشرف آزاد بولي، خو د خپلي مدعی د ثبوت له پاره د ترمخني بيت غوندي څيني داسي بيتونه نقلوي چې پر بند باندي ئې دلالت کوي لکه په دې پسې خلوريزي کېښي :

رب دي ورک آتشين ږغ (۱) د دې سرنا کا
دم په دم د مرده (۲) غم راته احيا کا
بيجاپور لره چې راغلم که مي غوږ کړ
دلې (۳) هم هغه فغان دی چې ئې دا کړم

دغه مانا دا چې د گواليار پر زندان باندي هم سورنا ور ته وهله کېدله، او د بيجاپور پر زندان باندي هم . نو دی تر ۱۱۰۲ دمخه په بېجاپور کېښي آزاد نه و . دا چې سورنا و دء ته د "مرده" ای پلار غم ور په ياداوء، دلالت پر دې باندي کوي چې دغه شعر ئې د ۱۱۰۰ يا ۱۱۰۱ ه دئ . دغه مانا کله چې و افضل جيو ته اميرخان سرکاري ملازمت ورکړئ ؤ، ښايي تر دغه دمخه ئې اشرف له گواليارە څخه د بهرام په ټونگ سره وبېجاپور ته لېږلئ ؤ . دا څکه چې ياده کړې مرکه هم په دغه کال کېښي سوې وه .

لومړنی معترض کاړي چې امير خان له ۱۰۸۷ څخه تر مرگه (۱۱۰۹ ه ق) پوري د کابل صوبه دار ؤ، چې بل چا دومره اوږده مده صوبه داري کړې نه وه، څکه نو دی د خورا ډېر باور او اعتماد خاوند ؤ .

"او له دې دا قياس کېدی شي چې که دی امير خان په ۱۰۹۸ ه (د اشرف خان د گرفتاری نه شپږ کاله پس) کېښي بادشاه ته د افضل خان د منصب تجويز کړئ وي نو د دې منصب سره سم به ئې د اشرف خان له زندانه د بهر کولو تجويز هم کړئ وي لکه چې د سياست تقاضا هم وه او له بهرامه د خوشحال بابا او د افضل خان مطالبه هم" (قلندر _ في المېزان ۲۴۵ _ ۲۴۶ مخ) .

افضل جيو په کومه لوړه رتبه او مقام کېښي نه مقرر کېدئ چې بايد منظوري ئې له عالمگير څخه اخسته سوې وای . بل دا چې د ۱۰۹۸ ه تاريخ له کومه سو؟ کله چې ئې د نيکه، خوشحال له ملگرتيا او له وروستني مرکې څخه اميد وختئ، افضل جان د ۱۱۰۰ ه ق په دوبي کېښي پر آس سپور سو، او سيده و کابل ته ولاړئ چيري چې ئې سم د لاسه د مغولو ملازمت حاصل کړای سوای .

ښايېدءنه : امير خان صوبه دار بـه افضل جيو خود دوه کاله خارلئ او از مويلئ ؤ څو دا ئې و خان ته ثابته کړې و چې هغه و دء او دولت ته څونده وفاداري او اخلاص لري، او بل له بهرامه سره ډغري وهي که نه؟ څنگه چې داسي پېښه سوې نه ده نو تر دغه وورسته به ئې و اړونده مرکزي دفتر ته د اشرف هجري د آزادءوني مشروط فرمان استولئ ؤ . مشروطيت به ئې دا ؤ چې که دی آزاد سي، له بهرامه سره خو به ډغري نه وهي؟ څکه چې بهرام د امير خان په چوپړ کېښي ولاړ ؤ . دغه مانا بهرام د امير خان اعتماد حاصل کړئ ؤ . له دء سره به د اشرف په ډغرو وهنه سره امنيت مختل سوئ وای . دغسي هم، تر څو پوري چې امير خان صوبه دار ؤ، له بهرام سره د افضل جان مخالفت له بالفعله حالت څخه و بالقوه حالت ته گرځېدلئ ؤ . و امير خان صوبه دار ته په سيمي کېښي امنيت او آرامي تر نور هر

څـه اولیت لارء چـي پـه نـه والـي سـره بـه ئـې دی هـم نـه وای .

د قادر جیو دغه پسې یو بیت د اشرف او بهرام په اړوند د ۱۰۹۲ ه او بل ئې په ۱۱۰۱ ه کښي یا لند وروسته ویلئ دئ

چي ئې شا په شا په کټ کښي نماستي نه شي
دا فلک ئې په هواد خبله جدا کا



سخت وي پر سړي باندي نژدې هجران تر لیري
یا رچي لیدء نه شي تر د کن لیري د ېوال دئ

**تبعید خپل که د بل :**

اوس به راسو و هغي پېښي ته چي قلندر وایي اشرف هجري په بېجاپور کښي بندي نه، خو آزاد وٌ . دء یو شمېر بیتونه وړاندي کړي دي چي آزادي ئې څني څرگندیږي . خو دغه بیتونه تر ۱۱۰۲ ه وروسته دي چي دء ئې کال و زمان ښودلئ نه دئ .

د وطن عیش و هوا به مي هېر نه شي
بېجاپور که راته ډک همه په زر کا
غم به همره د لیري پر هجري نه کړي
که یو گل د یار په رنگ وای په د کن کښي
نیرنگي د جهان گوري زمانیو
د هجري مکان د کن جان پر کابل شو
زء هجري دائم هوس د خپل وطن کړم
بېجاپور که هر خو ښه د اورنگ شاه دئ
چي هر دم ئې غم د یار په زړء څرخیږي
بېجاپور که همه گل هجري ته کاغ دئ
زء خټک پر بېجاپور آشنا پر روه دئ
ولایت مو سره اړ د هندوبار دئ

(اخستنه د قلندر ـ فی المیزان ۲۳۵ ـ ۲۳۶ مخ، د نورو بیتو اخستنه ئې بل چیري کیږي)

په وړاندني دریېم بیت کښي چي وایي : "جان پر کابل شو" مراد ئې خپل زوی افضل جیو دئ . دا خو دا مانا لري چي پلار ئې د مغولو دښمن وٌ او زوی ئې د مغولو په چوپړ کښي ولاړ وٌ . له دغه بیته څخه داسي ښکاریږي چي اشرف له مغولو سره د زوی په ملازمت خوښ سوئ وٌ، دا په دا چي پېښه ئې د ورور بهرام په مخامختیا کښي د خپلي خوا پر غښتلتیا باندي اطلاق کېدله . وړاندني بیتونه او هغه چي بل ځای به وکښل سي، د وطن هوا او هوس په ارمان سره پکښي یاد سوي دي، ټول د دء پر تبعید باندي دلالت کوي یا خپل یا د بل .

دا چي له اشرف سره لیدني کتني کېدلې، دا چي دء اشعار ویلي دي . نو خود هم معترض لا د دء د نه زندانیتوب په اړوند نور څه هم وایي او داسي :

"که دومره سهولتونه په دغه زمان کښي { و } سیاسي بندیانو ته حاصل وو نو بیا خو د مغولو حکومت د ډېر تعریف او ستایني اهلیت لري . خو حقیقت دا دئ چي د بادشاه خپل زوی معظم چي ۴۰ هزاري وٌ او هم دغلته کښي قید وٌ نو هغه او ځامنو ته ئې د سر خرڅیلو اجازت هم نه وٌ" (قلندر ـ فی المیزان ۲۳۹ مخ)

د هر سیاسي بندي جرم او گناه نه په یوه سویه او درجه سره وي او نه ئې نوعیت یو وي . د څلوېښت زریز لښکروال سپاهبد سرغاړیتوب پادشاهي لړزوي، او که ئې ژر او پر ځای چاره نه وکړه سي، نړوي ئې هم . ولي هجري پنځسویز پړ ک مشر لا هم نه وٌ . بل ئې د دولت پر ضد هم څه د پاخون گناه کړې نه وه . له یوې خوا څخه پلار څني مرور وٌ، او له بلي خوا څخه ورور، بهرام، ورسره اخستې وه او اوبه ئې ورته خړولې . بل ئې تر دغه ټاپې، چي د هند افغان ورغلئ دئ دمخه لا نهه کاله په زندان کښي پوره سوي ول چي پخپله ئې یاد کړي دي . یعني له زماني پلوه څخه دغه لیدنه چي وروسته به ئې یادوءنه وسي، د ۱۱۰۲ ه ق تر لومړنۍ میاشتي وروسته سوې وه .

**غوځوني پېښه :**

ښایوءنه : اوس به وگورو چي په بېجاپور، د کن، کښي د هجري په اشعارو کښي څه داسي څرک سته چي اشرف هجري څنگه او کله له زندانه څخه ایسته سوئ او نظر بند کړء سوئ وٌ . دء پخپله داسي ویلي دي :

ما له شعره شغل کا په بېجاپور کښي
چاوې تالره راځي د هند افغان دی
بل مطلب ئې پر زړه نشته بې دیدنه
خواهش کا د غزلونو سخن دان دئ
وی می زر ئې بړبړ راوله نادانه
د دانا سړي مجلس داد د یزدان دئ

(اخستنه د قلندر ـ فی المیزان ۲۳۸ ـ ۲۳۹ مخ) .

خـو بیـا هـم لومـړی معتـرض داسـي اعتـراض لري :

"که دا شعرونه په زندان کښي لیکل شوي وي نو د دې مطلب دا شی چي د هندي مغلو { په } بندي خانو کښي په { پر } ملاقاتونو هیڅ پابندي نه وه او بندیانو یکښي داسي خلق { له } ځان { ځانو } سره ساتلئ شو { شوای } چي دوی ورته "نادان" وئیلی شو { شوای } او هغوی به نه خفه کېدء" (قلندر ـ فی المیزان ۲۳۹) .

بل ئې تر دغه ټاپي، چي هندي افغان ورغلئ وُ، ای له زماني پلوه ئې دغه لیدنه د ۱۱۰۲ هـ ق تر لومړنی میاشتي وروسته سوې وه .

ښایېدنه : مېلمانه د کهاله ور ټکولئ نه دئ، خو د کور هردلی (نوکر) ورغلئ وي چي په ورء کښي څوک ولاړ دئ. دغسي نفر خدمت بیا د پوښتنو گروېږونو حق، صلاحیت او جرئت هم نه لاره . دغه "نادان" به د زندان پیره دار وٌ. لومړی د زندان ساتنوال له مېلمانه څخه پوښتني کړي، او د هغه د لیدني مشخصات ئې د پیره دار په وسیله سره و هجري ته ور یاد کړي دي . بل به لا مېلمانه ځان د زندان و ساتنوال (آمر) ته ور پېژندلی وُ چي دی په رسمي کار پسي ورغلئ دئ . د وخت او زمان و قرینې ته باید سړی ځیر اوسي . بل دا چي نه اشرف جیو په زندان کښي هردلی لارء، او نه ئې و هغه ته "نادان" ویلي دي . د بیت مورد ئې بېل دئ .

ښایېدء نه : پوښتنه دا پیدا کیږي چي د هند افغان د اشرف جیو له شاعری څخه ځنگه او چیري نغوږېدلی وٌ؟ بل لا دا چي د دء څرک ئې له چا څخه ایستلی وُ چي دی د بېجاپور په زندان کښي بندي یا بل چیري دېره وٌ؟ دغه معلومات ئې دلالت پر دې باندي کوي چي لږ تر لږه تر ۱۱۰۰ هـ دوه کاله وروسته، کله چي د امیر خان صوبدار زړء پوړه سوئ وٌ، یعني نور له افضل جیو څخه اند ېښمن نه و، نو ئې د هند افغان ورلېږلئ وٌ خو د اشرف زړء هم وپلټي . دغه ېښه د زماني مطابقت له مخي څخه، او هم له پسې تحوله څخه استنباط کېدای سي . نو اوس دوې ښایېدني سته :

(۱) ښایېدءنه : نو خود دغه "سخندان صاحب" به د وطن د پېښو په اړوند د اشرف نیت او نیامت معلوماوء . هجري به خود و افغان "سخندان" صاحب ته ویلي وي چي که هر کله دی وطن ته ستون سي له بهرامه سره به ئې گزوي، هم په اوږدء او هم په پسارء . ځکه نو تر دغي لیدني وروسته امیرخان میرانو میر هم دی نور له زندان څخه ایستلئ، خو په بېچاپور کښي ئې نظربند ساتلئ دئ .

دغه مانا تبعید . دغه پېښه د ۱۱۰۲ هـ په منځ کښي سوې اېسیږي .

که اشرف هجري و هندي افغان ته ویلي وای چي نور به له بهرامه سره ورور گلوي کوي، نه لښکر کښي او جنگ، نو به یې بشپړه آزادي ورکړې وای . بیا هم که دی د امیرخان تر مرگه پوري ژوندی پاته سوئ وای، نو لکه پلار ئې دی به هم د بهادرشاه له کاروانه سره و هیواد ته ستون سوئ وای، او هغه به لا ښایي د بهرام ځای هم ورکړئ وای .

اوس یوه دغه پوښتنه ناحله پاته ده چي هجري په بېجاپور کښي نظربند وٌ، حکومتي تبعید وٌ، که ئې ځان تبعید کړئ وٌ؟

(۲) ښایېدءنه : داسي ایسي چي "سخندان افغان" دي و امیرخان میر میران صوبه دار ته اطلاع ورکړې وه چي که اشرف و هیواد ته ستون سي، دی به له خپله وروره، بهرام، څخه کسات کاږي . صوبه دار ئې زوی، افضل، ورغوښتئ دئ او دا ئې پر ایښې ده چي خپل پلار سم وپوهوي او خود هم هغه دغه کار داسي کړئ دئ : ما له امیرخان صوبه دار سره تعهد کړئ دئ چي تر څو دی د کابل صوبه دار وي، له بهرام سره به نه دی (افضل) دغري وهي او نه به ئې له کورنی څخه بل څوک داسي کار کوي .
اوس که پلاره تاسي و هیواد ته را درومئ، خدای ﷻ مو هر کله راوله، پل مو پر لېمو . هو یوازنی هیله مي دا ده چي زما سوگند لوړلئ تعهد باید مات نه کړل سي . هر کله چي میر میران نور د کابل صوبه دار نه وي، ما هم سوگند لوړلئ دئ چي ستاسي کسات به له بهرام څخه اخلم .

د دغسي لیک په نتیجه کښي اشرف دا غوره بللې وه چي چیري دئ، هورې به اوسي . دی د پاڼ او پړانگ تر منځ پاته سوی وٌ . دا ایسي لکه افضل جان زوی چي ئې دا هم کولای نه سوای چي پلار ئې له لیري بېجاپور، دکن څخه و نژدې لاهور، راولپنډی، کابل یا یوء بل داسي ځای ته ور تبدیل کړئ وای .

اشرف هجري به په ۱۱۰۰ هـ ق یا پسې کال کښي د پلار له مرگه څخه خبر سوی و، او هم ئې په داغه میاشت و کال کښي د هغه د مړیني وېرنه په زندان کښي ویلې ده . قلندر پر دې ټینگار کوي چي اشرف په بیجاپور کښي بندي نه وُ. **ځکه که چیري دی آزاد وای، نو بیا ئې چا ولي** مخه نیوله چي دی د خپل وطن ته ستون سوئ وای، او هغه هم په داسي حال کښي چي زوی، وروڼه، او نور دوستان ئې

هوامن ول . اشرف باید دغه کار په ویاړ سره کړئ وای، ځکه چي زوی ئې د منصب او اقتدار خاوند وُ . له بلې خوا ځخه ئې د پلار مېنه هم سپېره سوې وه . که د بل چا او څه له پاره نه، نو د خپلې محبوبې له پاره خو باید ستون سوئ وای چي دء ئې ارمانجنه غوندې غوښتنه لرله چي وروسته ئې یادوءنه کیږي . دی نظربند یا تبعید آزاد وُ . ورور ئې، سکندر ،وزاړو ته په خطاب کښي داسي ویلي دي :

ولي بیا چي ولایت وته رادرومئ
جګې جګې وکړه بیا زموږ پر خان رغ
چي له موږ سره را درومه و وطن ته
بې له تا بلبلي نه کا پر بوستان رغ
چي پېره (پر دې) مکان د وطن نه کړې
مګر خوښ د تا مکان د هندوبار شو

(اخستني د کامل او قلندر _ فی المېزان ۲۴۱ مخ)

دا چي سکندر و اشرف ته د خپل "خان" په لقب خطاب کړئ دئ، دلالت پر دې باندي کوي چي د ختکو قبیله د اشرف او بهرام تر منځ وېشلې سوې وه .

قلندر د ښادروان کامل د دوو ښایېدنو (چي وروسته رااخستلي کیږي) په رد کښي وایي چي "د اشرف خان ډېر هغه شعرونه چي هغه په دکن کښي لیکلي دي دا نه ښرګندوي چي هغه بندي {وُ} . د مثال په طور دا څو شعرونه پیش کوم :

پر ما هر زمان اختر دئ چي تا وینم
بې دیدنه دي دکن شي راته خار
په اخلاص شه راروانه فکر مه کړه
و همت وته شي لنډه اوږده لار
تل دي لاف د پت کاوء په خپل وطن کښي
د کن څه دئ که رښتیا کوې اختیار
تر هندوي کمه مه شه په یارئ کښي
چي په یار پسي له اوره نه کا ډار
که په ما پسي رانه شې ودکن ته
په دروغ دي راته کړ د مینې شمار
د لیلی غوندي رښتیا وکړه نامې شه
په مجنون پسي وطن کړه هندوبار
په دکن کښي ناوې جونه کمې نه دي
که مي زړه پر چا کولای لږ قرار

د دېرشو شعرونو {بیتونو په} نظم کښي له خپل وطني محبوبې نه بار بار او په اصرار دا درخواست شوی دی چي له روهه دکن ته راشي {ورشي} ،اوس نه یو خبر چي د مغولو د زمانې په بندي خانو کښي سیاسي قیدیانو ته دا مراعات حاصل وو چي خپلې محبوبې {له} ځان سره ساتلی شي {؟}". (قلندر _ فی المیزان ۲۳۷ _ ۲۳۸ مخ) .

لږ وروسته به خبر سو چي پېښه څه او څنګه وه . له روه څخه د خپلې مینې له خوا څخه منفي جواب ور رسېدلی وُ چي نو دء هم لاس ځني پر ېولئ وُ . نور نو په بېجاپور کښي پسي ګرځېدلئ او پر پېښ سوئ وُ چي دی ئې بیان پخپله داسي کوي :

یاره ذوق په روه کړه {کوه} په دکن خوښ یم
مه مي ځان لره ځکوه {څخوه} نه دي دا کار دئ
یار مي پاته ډ {ر} وطن زء ډ {ر} دکن شوم
اوس به یار نسمه بل په بېجاپور کښي
یوه ورځ د باغ په سیل ومه تللئ
د چمن ډ {ر} دلبره وه ولاړه
ما وې اې د صباحت ډ {ر} سریر ناستي
که هر څو پر دکن ډیرې دي دلبرې
هجري ته په غوره ونیوې ګوهرې
چي په مهر مي ستا یاد کړی مرګ دی مه وی
لب شکرې، سیمین برې، موکمرې

دغه مانا هجري د بېجاپور ژوند اختیار کړئ او مېنلئ وُ . دې هورې کور او کهول سوئ وُ . له وروستني بیت څخه ئې داسي ښرګندېږي چي دکنې بیجاپوره ناوې ئې هم مړه سوې وه، او دی کونډ سوئ وُ . په هندوستاني ټولنه کښي که به څه هم هغوی مسلمانان ول، بیا هم هغه زمان، کونډ سړی او کونډه ښځه شوم او بدمرغه ګڼل کېدل . دوی نه بیا واده کولای سوای او نه هم نورو خلګو په خپلو منځو کښي ښه راغلاست ورته وایه، ځکه یې نو هم زړه له ګرومه څخه ډک وُ . په څه باندي لسو کالو بند کښي ئې زهره نه وچاوده، خو په نژدو ځلورو کالو تبعید کښي ئې دغه پای وُ . دء پخپله له یوازیوالي څخه داسي تجاوز کړئ دئ :

چي هجري غوندي جدا وي له یارانو
که بادشاه شي ډ {ر} دکن عمر ئې خوار دئ

**خوشحال او رحمان :**

۲ . و اشرف هجري ته د رحمان بابا اشعار کله ورسېدل .

پسله یوې اوږدې مخالا څخه به و اصلي مطلب ته راوګرځېږم، دا چي و اشرف جیو ته د رحمان اشعار تر بند دمخه، د بند په ترځ کښي، او که د ځلور کلنی نظربندی په

وخت کښي ور رسېدلي ول؟ له دغو درو سرو ټاپو څخه د رحمان د شاعرۍ او ژوندانه يو نسبي تاريخ ټاکه کېدای سي، نه مطلق.

يوه لانجه : شخړه داسي ده چي قلندر وايي رحمان د خوشحال تر مړيني (۱۱۰۰ ه ق) وروسته د شاعرۍ نوم ايستلئ او دی به دغه زمان څه ۲۰ _ ۲۵ کلن ځوان و. څنگه چي اشرف هجري د رحمان شاعري ستايلې ده، نو لانجه دا ده چي و ده ته د رحمان اشعار تر ۱۱۰۰ ه ق چي د خوشحال خان د مړيني کال دئ، دمخه که وروسته ور رسېدلي ول؟

که و اشرف ته د رحمان د تاندي ځوانۍ اشعار رسېدلي وای، ده به ښايي هغسي د اوچتوالي او معتبرتيا درجه ور کړې نه وای لکه اوس چي ئې ور کړې ده. ښايي اومه او پاخه به ئې گډوډ وای لکه زموږ د اوسنيو شاعرانو دا چي داسي دي. زه هم ځان مستثنی نه بولم. دا خبره هم د منلو وړ ده چي ښه احساساتي اشعار د ځوانۍ پر مهال ويل کېږي. خو د مانا له پلوه څخه پاخه اشعار د پاخه ژوندانه وي.

ښايېدنه : ښادروان دوست محمد کامل په دغه اړوند داسي کښلي دي : "مونږ د دې خبري ډېر معتبر شهادت لرو چي خوشحال بابا لا ژوندی و { _ } چي د رحمان بابا شعر عروج ته رسېدلئ او شهرت ئې لري نژدې خور { خپور } سوی و { _ }، (اخستنه د قلندر _ في الميزان ۳۱ مخ).

دلته په ډېر ادب د خپل محترم دوست او مشر جناب دوست محمد خان کامل مومند مرحوم { له } رائي سره د اختلاف جرأت ښکاره کوم چي د رحمان بابا د شاعرۍ د مقبوليت او شهرت په باره کښي ئې څرگنده کړې ده . . .

دا "معتبر شهادت" د اشرف خان هجري هغه قصيده ده چي پکښي هجري د پښتو د ځينو شاعرانو ذکر کړی دئ او { . . . } د رحمان ذکر ئې داسي کړئ دئ :

د رحمان ډ{ ر } ويل ځای د لقب نشته
چي ئې ما شعر منظور کړ معتبر دئ

دا قصيده د انتهائي معتبر شهادت له رويه چي استناد ئې کامل مرحوم هم منلی دی، د خوشحال بابا د وفات نه پس ليکلې شوې ده. { . . . } ځکه نو له دې قصيدې نه دا استنباط چي د خوشحال بابا په ژوند { انه کښي } د رحمان بابا د شاعرۍ شهرت لري نژدې خور { خپور } شوی { وُ } صحيح نه دی". (قلندر _ في الميزان ۲۳۱ _ ۲۳۲ مخ)

د خپلي وړاندنۍ ښايېدنې له پاره ښادروان کامل داسي دليل وړاندي کړئ دئ :

"اگر که { له } خوشحال بابا سره هم د هغه د قيد په زمانه کښي د هغه خپلو خپلوانو او دوستانو کله کله ليدل کتل او خط و کتابت به ئې ورسره کولو او دغه قياس د سکندرخان { له } يو { ء } نظم نه دا خيال تر يقينه رسي نو دا ناممکنه خو نه ده چي هجري ته د خپل وږد قيد په زمانه کښي د رحمان بابا د شاعرانه عظمت په حقله معلومات حاصل سوی وي خو ډېره غير اغلبه ضرور ده { ؟ } چي { په } دې دوران کښي چي مونږ پکښي د نظم د تصنيف وخت ټاکلئ دی يعني ۱۱۰۰ ه او ۱۱۰۶ ه تر مينځه ورته د عامو خطونو او د سکندرخان او نورو وروڼو د نظمونو نه علاوه د رحمان بابا او نورو پښتنو شاعرانو نظمونه هم ورلېږلي شوي وي او بيا په دومره تعداد کښي چي د رحمان بابا په باب ئې د هغو نظمونو ډ{ ر } ښا دومره وچته رائي په دومره حتمي طريقه قائمه کړې وي نو غالب قياس هم دغه کېدای شي چي هجري ته دغه معلومات د قيد ېدو نه وړومبی حاصل شوي وي"، (اخستنه د قلندر _ في الميزان ۲۳۲ مخ).

قلندر وايي چي ښادروان کامل خپله دوهمه مفروضه داسي وړاندي کړې ده :

"که دا ومنلی شي چي د اشرف خان هجري د رائي د رحمان بابا په هغو نظمونو مبني وي چي ده ته د ۱۱۰۰ او ۱۱۰۶ ه په مينځ کښي بندي خانې ته لېږلي شوي وو نو بيا به هم دا منل ضروري وي چي که دا نظمونه هجري ته { په } دکن کښي مهيا وو نو د هغه خاندان په پښتو مينو او د پښتونخوا نورو شوقمنو خلقو ته خو به له مخکښي نه حاصل وو. ځکه نو { په } پښتونخوا کښي به هغه خامخا شهرت او مقبوليت لرلو.

زه له احترامه سره چي تل مي د مرحوم کامل مومند دپاره لرلو { . . . } دغه دواړه { له دغو دواړو } مفروضو سره د اختلاف جرأت کوم. زما استدلال دا دی چي وړومبی خو دا خبره ثابته نه ده چي اشرف خان هجري لکه چي عام طور سره گڼلی شي په دکن کښي بندي { وُ }. تاريخ مرصع د گواليار د بند په زمانه کښي اشرف بندي گڼي. خو د اشرف خان ډېر هغه شعرونه چي { وړاندي په ۸،۲،۵،۳ کښي وړاندي کړل سوي دي د ده

پر آزادي باندي دلالت کوي } " (قلندر _ في الميزان ۲۳۴ _ ۲۳۵ مخ) .

قلندر داسي پوهېدلئ دئ چي د ۱۱۰۰ _ ۱۱۰۶ هـ تر منځ له پېښاور يا اکوړي څخه د ډاګ په وسيله سره و اشرف هجري ته "په دومره تعداد کښي د رحمان بابا د غزلو لېږل ممکن وو چي اشرف خان پرې په "حتمي طريقه "يوه" وچته رائ" قائمولی شوه . بهر کيف دا خبره هم د بحث ده چي اشرف خان د رحمان بابا د شاعرۍ په ضمن کښي "وچته رائ" په "حتمي طريقه" ورکړې هم ده او که نه د دې مقصد دپاره مونږ ګران لوستونکي د اشرف خان هجري هغه نظم ته متوجه کوو { په } کوم کښي چي دا "وچته رائ" په "حتمي طريقه" قائمه شوې ده" (قلندر _ في الميزان ۲۳۸ مخ) .

په قصيده کښي اړونده بيت داسي دئ:

د رحمان پر ويل ځای د لقب نشته
چي ئې ما شعر منظور کړ معتبر دئ

ښايېدءنه : د يوء دغسي نظر د ورکړي له پاره به و هجري ته د رحمان ګڼ شمېر اشعار ور رسېدلي ول، او دغه کار به ډېر ښايي په ۱۱۰۱ هـ کال کښي سوی ؤ . بل دغه د اشعارو پلنده د ډاګ په وسيله سره لېږلې سوې نه وه . ډاګ به ښايي يوازي د رسمياتو له پاره ؤ . و اشرف ته به لږ تر لږه هر کال ځلور _ پنځه آسان د خپلوانو په سوغاتو سره بار د کورنی غړو او لار پېژاندو نوکرانو ور رسول . له سوغاتو سره به يو طومار هم ؤ چي دغه سوغات دي د پلار، هغه دي د مور، دا دي د خور، د ورور، د زوی، لور، نورو او نورو خپلوانو له خوا څخه . اشرف بيا د دغو سوغاتونو مواد د زندان پر ساتنوالانو باندي وېشل . هغويو هم د دغي پېرزويني په ځای کښي و دء ته مېلمانه ورپرېښوول، او هم ئې دی پر ښناوء ځو دباندي ګرځېدلئ وي . "انسان بنده د احسان" .

اوس د قلندر هغه دليل چي دی وايي، که چيري د رحمان اشعار له خوشحال سره موجود وای، نو دء به د هغه په باره کښي اوچته رايه لرلای، خو اوس ئې چيري ياد کړئ لا هم نه دئ . دء په دې باره کښي داسي ګښلي دي :

"که چري په ۱۱۰۰ هـ کښي د رحمان بابا دغه عمر وي { ۳۷ کلن يا ۲۵ کلن } نو هغه به دومره پوخ شاعر وي چي د خوشحال بابا غندي ادبي نقاد دپاره د هغه نظر انداز کول مشکل څه چي بالکل ناممکن وو . مونږ د خوشحال بابا په کلام کښي د ډېرو شاعرانو ذکر وينو خو د رحمان بابا ذکر پکښې بالکل نشته" (قلندر _ في الميزان ۲۳۰ مخ) .

ناښايېدءنه : لومړی ولي د خوشحال د مړيني تاريخ معيار ګرځاوء سوی دئ؟ دا څکه چي د دء ياده کړې قطعه په دغه کال کښي ويلې سوې ده؟ کورټ نه !

ښايېدء نه : دغه قطعه به ډېر ښايي چي د خوشحال د پخې ځوانۍ وي . څکه چي شاعران بالعموم په ځواني کښي ځان بامنه کوي او باتې ولي . دا مانا د قطعې تاريخ به تر ۱۰۷۴ هـ ق د مخه يا ئې شاوخوا ؤ . نو دغه وخت به رحمان چي ډېر ؤ څه د پرش (۳۰) کلن به ؤ . خوشحال د دغه عمر شاعران داسي غونډ ياد کړي دي :

{ ها } چي لاف وهي د شعر
نن په دا دور دي ډېر
ځوک پاوی ځوک نيم پاوی دی
قلندر پکښې نيم سير

خوشحال وايي چي په دې زمانه کښي "ډېر" شاعران سته چي د ښې شاعرۍ باتې ولي، خو په نامه ئې درې _ ځلور ياد کړي دي . دغه مانا دا چي دء کومه شاعر نامه ليکلې نه ده . د دغه شعر تر ويلو وروسته خوشحال د نورو پر شاعرۍ باندي بيا قضاوت کړئ نه دئ . خو قلندر داسي وايي :

"که ځوک دا ووائي چي د دې قطعې { د } ليکلو په وخت کښي { و } خوشحال بابا ته د رحمان بابا کلام نه ؤ رسېدلئ { نو } څکه ئې هغه ذکر نه دئ کړئ نو دا وضاحت به څکه غلط وي چي له دې قطعې نه بغير هم خوشحال ځو ځو ځ { له } د نورو شاعرانو ذکر کړئ دئ . څکه نو د عمر په هره حصه کښي که د خوشحال غوندي عظيم نقاد ته د رحمان بابا غوندي د عظيم شاعر کلام رسېدلئ وي نو هغه به ئې خامخا ذکر { . . . کاوء } " (قلندر ۱۹۹۳ : ۳۳) .

ښايېدءنه : په کوم سند سره دغه "ځو ځو ځله" نور شاعران يادوءنه تر وړاندنی قطعې وروسته دي؟ که نه ګانه وروسته هم وي، هغه به ئې هم د ځوانۍ يا پاخه ژوندانه په زمانې پوري اړه لري . نو د رحمان اشعار و غمجن خوشحال ته په زاړي ژوندانه کښي رسېدلي ول چي و دء ته نور د شاعرۍ وجد، احساس او هيجان ورپاته نه ؤ، او هم کورنيو او دباندنيو ناخوالو په خپلو ځپو کښي لاهو کړئ ؤ .

شایېدءنه : دا یو روحیاتي غروړی دئ چي زاړي، په خان خانتما ماهران، او زموږ په بیان کښي شاعران، تر څان کشران عموماً په نامه سره نه ستايي . نو قلندر به هم د خوشحال همزولي وُ چي په نامه سره ئې یاد کړئ دئ، او رحمان خود تر کشر وُ، دغه مانا د نه یادوءني عامل به ئې د رحمان کشر توب وُ، نه شعري اوموالئ .

خوشحال به بوخت سړی وُ که رحمان؟ رحمان به د خوشحال په نیویمه (۹۰/۱) برخه نه اجتماعي، نه سیاسي، نه حربي، نه اقتصادي، او نه هم عشقي مصروفیت لاره . سره له دې هم د کمیت له مخي څخه د رحمان دېوان د خوشحال د دېوان در ېیمه برخه کېدلای نه سي . دا هم په هغه صورت کښي چي د خوشحال نور آثار لا ایسته پرې ښوول سي . خوشحال خان د خپلو اشعارو ډېره برخه په څواني یا په زندان او نظارت کښي لیکلې ده . په دغه یادوءنه کښي دوې خبري نغښتي دي : یوه دا چي خوشحال په آزاد ژوندانه کښي ډېر بوخت سړی وُ، او شعر ویل ذهني او عضوي فرصت غواړي . نو دءِ ژوندانه په وروستی برخه کښي د نورو په شعر او شاعري سر گرځولای نه سوای، البته لوستلي به ئې ډېر ول . دغه مانا یاده کړې قطعه ئې په زندان کښي یا تر دغه وخت دمخه ویلې ده .

دوهمه خبره دا ده چي د رحمان شعرونه نسبت د دءِ و اوږدءِ ژوندانه، انزوا، او فرصت لرني ته خورا لږ دي . دغه پېښه ښايي تر یوې اندازې پوري دلالت پردې باندي وکي چي دءِ به لږ اشعار ویل، او بل دا چي موجود دېوان به ئې د اشعارو منتخبه برخه وي . دغه دواړي پېښي دلالت پر دې باندي کوي چي دءِ به په پاخه ژوندانه کښي د شاعرۍ نوم ایستلئ وُ . که به څوک وایي چي د رحمان ډېر اشعار ورک سوي دي، ودي سي، او د خوشحال اشعار هم ورک سوي دي . څکه به نو علاقه مندانو او شوقیانو د دءِ د اشعارو نقلونه د دءِ په پاخه او زاړي ژوندانه کښي اخستي ول . په دېوان کښي ئې هم څوانۍ په تورتي ژبي سره منعکسه سوې نه ده، خو زړتیا ئې ډېره ـ ډېره داسي یاده سوې ده . نو که رحمان د اورنۍ څوانۍ دوږخي اشعار پخپله سوځولي یا په اوبو کښي لاهو کړي وي احتمال ئې سته . کوم تبرک چي رحمان بابا موندلی دئ هم له دې اسیته څخه چي په دېوان کښي ئې د تاندي څوانۍ اشعار نسته . که د خوشحال بابا له دېوانه څخه هم د دءِ د څوانۍ اشعار وایستل سي، له دوی دوو څخه به د یوءِ غوز (جوز) دوې پلې جوړي سوي وي .

شایېدءنه : دا احتمال به ډېر لږ وي چي د رحمان تازه اشعار دي په اوني او میاشت کښي دننه له پېښوره څخه و اکوړې ته، او له وروستني څایه څخه دي سم سیده و لیري دکن ته استول سوي وي . دغه مانا اکوړه یا د خټکو بل ټاټوبی په هر صورت کښي د پېښور او بېجاپور تر منځ واسطوي مرکز وُ . دا چي دغه کار د خوشحال په ژوندانه کښي سوئ دئ که وروسته، لاندي به ئې په څرک پسي گورو .

داسي کېدلای نه سي چي زوی اشرف دي په لیري دکن کښي د رحمان اشعار ولري، خو پلار خوشحال دي ئې په نژدې اکوړه یا سرای کښي نه ولري . دغه مانا د رحمان اشعار د پلار خوشحال له خوا څخه واشرف ته رسېدلي دي .

قلندر وایي چي د رحمان اشعار و اشرف ته د خوشحال تر مړیني وروسته ور رسېدلي دي . و دي سي، خو ډېر وروسته هم نه . دا څکه چي د پلار ادبي میراث، ښايي د هغه له وصیته سره سم، و اشرف هجري ته ورسپارءِ سوئ وي . د پلار وصیت مي ئې څکه یاد کړ چي یو خو د زندان یوازیوالئ او گروم پر دءِ باندي هم تېر سوئ وُ، بل ئې اشرف مشر زوی او هم شاعر وُ . څکه نو د پلار میراث د دءِ وُ . ولي دغه پسې بیت ئې داسي ښو چي خوشحال پخپله د خپلو او نورو اشعارو پلنده وراستولې ده :

ټول ئې وسپاره پر ما سریر د نظم

هغه نمر چي نن د خاورو پر بستر دئ

په دغه میراث کښي خود د خوشحال پر شعرونو سربېره د نورو، خپلوانو (زامنو)، پرءِ دیانو او شاعرانو اشعار، چي په هغو کښي به خود د رحمان پاخه شعرونه هم شامل ول، و هجري ته ورلېږل سوي ول د کومو له مخي څخه چي اشرف هغه قصیده ویلې ده چي د ورونو او نورو شاعرانو پر اشعارو باندي ئې د ارزوني قضاوت کړئ دئ . دءِ په صریحه توگه سره ویلي دي : خوشحال چي نن تر خاورو لاندي دئ، د "ټول" نظم دفتر ئې پر ما (اشرف) باندي سپارلئ دئ . څنگه چي دغه قصیده ئې هم د خوشحال تر مړیني وروسته ویلې سوې ده، نو خوشحال خپل او د نورو اشعار یا د ژوندانه په وروستنیو تورو ورځو کښي پخپله ورلېږلي ول، یا به ئې داسي وصیت او سپارښت کړئ وُ .

ثبوت ئې هم دغه وړاندني بیت دئ . خوشحال و نمسي افضل ته د مشر تابه شال یا لنگوټه وروترله، او و مشر زوی ته ئې د خپلو او نورو شعرونو دفتر یا سریر ورسپارءِ . د

رحمان هغه شعر چي اشرف هجري ئې په اقتفاء خپل شعر ویلئ دئ. د رحمان د پخې ځواني د وختو دئ. خو د دې مانا دا نه ده چي نو رحمان دغه شعر په ۱۱۰۰ ه کښي ویلئ دئ. ښايي اوز کاله تر مخه ئې ویلئ وُ. د شعر سربیت ئې داسي دئ:

ستا دې خواب آلودو ستر گو خواب راخخه یوور
شونډو دي لذت د میو ناب راخخه یوور

## (۴) په پټه خزانه کښي د اشرف هجري نه والی:

اشرف هجري د سرغنه خوشحال مشر زوی وُ. د دهٔ بند او آزادي له خزانې سره سیده اړه نه لري، خو قلندر په غیر سیده توګه سره په دوو بالواسطه مواردو کښي دی یو ناګزېر مبحث ګرځولی دئ. یو اړوند ئې د رحمان بابا د ژوندانه د سر وُ پای ټاکنه ده، چي دغه نو بیا له خزانې سره اړه لري. بل اړوند ئې له بهرامه سره دئ، او بهرام بیا له سرغنه خوشحاله سره یو راز تاریخي اشتباهي تړاو لري.

د لومړني معترض یو اعتراض دا دئ چي د یو شمېر نورو شاعرانو په ډله کښي رحمت هوتک، د محمد هوتک تربور. ولي د اشرف هجري په باره کښي له یونس خیبري څخه معلومات نه واخستلای سوای؟ (قلندر ــ فی المیزان ۲۸ مخ).

دهٔ داسي چورت وهلئ دئ چي یونس به اشرف هجري پېژندئ او له شاعرۍ څخه به ئې خبر وُ. دهٔ د یونس له دې پسې بیته څخه داسي قیاس کړئ دئ:

ډ{ر} تقریر د شعر فهم کړه یونسه
په قابو کښي در ته ناست دي شاعران ډېر

پخپله هم دغه معترض بل ځای داسي کښلي دي: "که صرف دا یو حقیقت هم د {تر} نظر لاندي وساتلي شي چي مونږ د اشرف خان هجري هغه مکمل دېوان لرو چي لویه حصه ئې په هندوستان کښي لیکلې شوې ده"، (قلندر ــ فی المیزان ۲۴۱ مخ).

ښایېدهٔ نه: دا چي د اشرف هجري د اشعارو ډېره برخه په هندوستان کښي ویلي سوې ده، مانا یې دا ده چي دهٔ پخپل هیواد کښي د شاعرۍ نوم ایستلای نه سوای. کله چي د دهٔ تر مړیني وروسته د دهٔ اشعار و اکوړې ته رسېدلي ول، هم به تر ډېره داسي غوټه کړي پراته ول. زوی ئې هم دغه زمان د مغولي حکومت په چوپړ کښي ولاړ وُ. یا له سیاسي پلوه یا د بوختوالي له پلوه څخه به په دې بریالي سوئ نه وُ چي د پلار دېوان دي ئې تکثیر کړئ وای او نورو شاعرانو ته ئې لیږلئ وای. نو که یونس خیبري دی پېژندلای هم به ئې د شعر نمونې ورسره نه وې. بل واقعیت د ښتنو په دې پسې متل کښي نغښتئ دئ:

"هر څوک پر خپلي ټیکلي باندي پوړندي اور اړوي". دهٔ ولي اشرف و رحمت هوتک ته ورمعرفي کړئ وای؟ بل خو نو داسي شاعران نور هم ډېر ول لکه خوشحال او یونس چي ئې مجموعي یادوهٔنه کړې ده، که یونس د بل شاعر شعرونه او سوانح و رحمت هوتک ته ور کړې وای، نو به د دهٔ اعتراض اړخ لګولای، اوس نه. رحمت هوتک د یونس خیبري احوال څکه اخستئ وُ چي محسن کوربه ئې وُ.[1]

- سپېڅلی وجدان نه غوړه مالي مني او نه سپکاوی.
- بې وجدانه عالم هیڅکله د سپېڅلي روح خاوند نه وي.
- سپېڅلی وجدان بې طرفه لارښود دی.
- د خان مننې او خودخواهۍ پیل د سپېڅلتوب پای دی.
- د روح درمل کول د بدن تر درمل کولو مشکل دي.
- د ښو اخلاقو څخه شرافت پاته سوی دی او د بدو خلکو څخه کثافت.
- آزاد وجدان د نیکو لارښوونو معلم دی.
- د بنیادم اخلاق او ښېګنه هغه وخت ښکاره کیږي چي څه یې ویلي وي هغه تر سره کړي.
- د ښو کړو وړو مجموعه ادب او پېرزوینه ده.

---

[1] یادونه: ما یو شمېر توري او لغاتونه اړولي دي چي د قلندر په اخستنه کښي داسي کښل سوي دي ږ:

۱. غږ (ږغ)، ۲. ومرده (دمرده)، ۳. ولی (ولای)، ۴. شه (چي دهٔ نور ځایونه هم په اصلي شکل "شي" "شو" کښلئ دئ)، ۵. لویه، ۶. که (کړ)، ۷. کولی (کولای)، ۸. څکوه ــ د خوشحال خان په دېوان او پټه خزانه کښي هم داسي کښه سوئ دئ، خو اصلي ځېر ئې "څخوه" دئ. څکوهنه د چیلم او سګرېټ څکوني ته ویل کیږي. پر دغي هري ورانۍ باندي باید قلندر یو نوټ کښلئ وای، خو کښلئ ئې نه دئ، او پر ډېرو نورو باندي هم داسي. "د بشریت د تقاضی په بانه (بهانه، پلمه) به ئې څنګه دفاع وکړی سي"، (قلندر ــ فی المیزان ۱۸۸ مخ).

محمد معصوم هوتک /کاناډا

# قصیدهٔ برده یا منظومهٔ برده

قصیده برده په عربي ژبه یوه مشهوره قصیده ده، چي د شرف الدین ابو عبدالله محمد بن سعید البوصیری لخوا د اسلام د ستر پیغمر حضرت محمد ﷺ په ستاینه کي ویل سوې ده. برده (د باء په پېښس) بې لستوڼو واسکټ ډوله جامې ته وایي، چي غالباً به مراد د حضرت رسول ﷺ خرقه مبارکه وي. د قصیدې ټول بیتونه ۱۶۳ ته رسیږي او پیل یې داسي دئ:

امن تذکـــر جیران بذی ســـلم
مزجت دمعاجزی من مقله بدم [1]

ابو صیر په مصر کي د یوه کلي نوم دئ او د قصیدې ناظم د دغه کلي و. البوصیري د ۶۰۸ ق کال د شوال پر اوله (۷ مارچ ۱۲۱۲ ع) په بوصیر کي زېږېدلی. د ۶۹۴ ـ ۶۹۵ ق کلونو تر منځ مړ سوی او د امام شافعي رحمه الله د قبر تر څنګ ښخ دئ (۲). ده د حضرت محمد ﷺ په ستاینه کي یو شمېر نور شعرونه هم ویلي دي، خو قصیدهٔ برده یې تر ټولو مشهوره قصیده ده. ډاکټر نیکلس وایي:

ویل کیږي دا قصیده په داسي وخت کي ویل سوې وه، چي ناظم یې د فلج ناروغۍ وهلی او نیم بدن یې مړ سوی و. یو وخت خوب وړی و او په خوب کي یې حضرت محمد ﷺ ولید چي د ده د بدن پر مړه سوي برخه یې لاس تېر کړ او خپله برده یې پر وغوړوله. البوصیري وایي:

"زه راویښ سوم او ومي کتل چي روغ سوی یم او ولاړ ېدلای سم".

په هر صورت ښايي دغه سبب به وي چي مسلمانان قصیدهٔ برده ته ډېر په درنښت سره ګوري. د قصیدې بیتونه زیاتره د خلکو په یاد وي او د ودانیو پر دېوالو یې په طلایي رنګ لیکلي وي. نه یوازي ټولي قصیدې د آفتونو او بلیاتو پر ضد د یوې ټوټکې په سترګه کتل کیږي، بلکي په هر بیت کي یې په جلا جلا توګه یو راز خاص روحاني طاقت سته (۳). دا قصیده معمولاً د "قصیدهٔ برده" په نامه یادیږي خو بشپړ نوم یې "الکواکب الدریه فی مدح خیرالبریه" دئ. کله کله د "قصیده البرده المیمیه" په نامه هم یاده سوې ده. هیڅ بل عربي شعر دومره شهرت نه دئ کټلی. په اسلامي دایره المعارف کي یې راوړي دي چي "پر دغه قصیده باندي څه دپاسه ۹۰ (نوي) شرحي په عربي، فارسي او تورکي ژبو کښل سوي دي. له هغې څخه یو زیات شمېر تخمیسونه، تثلیثونه او تشطیرونه جوړ سوي دي. اصل قصیده څو واره په ایران، هندوستان او اروپا کي چاپ سوې ده. په اروپایي چاپونو او ترجمو کي یې هغه چاپ د یادوني وړ دئ چي د (یوري) لخوا په لیدن کي له لاتیني ترجمې سره په ۱۷۶۱ ع کال چاپ سوی دئ. د "روسینزویګ" چاپ یې (ویانا ـ ۱۸۷۴ع) په جرمني ژبه ژباړه او حواشي لري. خو تر ټولو غوره چاپ یې هغه چاپ دئ چي د "رولفر" لخوا په ویانا کي سر ته رسېدلی دئ (۱۸۶۰ ع) او په هغه کي فارسي، تورکي او جرمني ترجمې هم ورسره مل سوي دي. د فرانسوي ژبي ترجمې یوه په ۱۸۲۲ ع کال په پاریس کي په "دوتاسیز اکسپو، دو له فوا" کي سر ته رسېدلې او بله یې د "بیسټ" په واسطه په ۱۸۹۴ ع کال په پاریس کي چاپ سوې ده. یوه انګرېزي ژباړه یې د "کلاوسټن اربک پویټري فار انګلیش ریډرز ګلاسګو" کي چاپ سوې ده. بله یې له اصلي متن او حواشیو سره د بمبئ د انجمن اسلام د مدرسې د مشر ملا شیخ فیض الله بهایي لخوا سر ته رسېدلې او په ۱۸۹۳ ع کي چاپ سوې ده. په هندوستان کي یې یو شمېر اردو

ترجمې هم خپرې سوي دي. قاضي شهاب الدين فاضل هندي پر قصيده برده يوه شرحه کښلې ده، چي "شرح البرده" نوميږي. بله شرحه يې د مولوي ذوالفقار علي ديوبندي ده، چي "عطرالورده" نوميږي او په ۱۳۱۵ ق (۹۸ _ ۱۸۹۷ ع) کي په ډيلي کي خپرې سوي دي. برده قصيده په پښتو ژبه هم څو واره ژباړل سوې ده. تر ټولو قديمه ژباړه يې د اخوند درويزه ننګرهاري لخوا سر ته رسېدلې ده، چي د ده د مخزن الاسلام په دوهم بيان کي راغلې ده. د دغي پښتو ژباړي پيل او پای يې داسي دي:

گوندي ستا د ذی سلم ياران ياديږي

خکه اوښکي دي له وينو ګډي ودې د باران په دود وريږي

درويزه چي اجتهاد په په علم وکړه عربي يې پښتنو لره پښتو کړه _ نور غم غرض يې نه وو مگر دا چي په نېکانو کښني ياديږي _ دا کتاب مي عربي و. د نبي صفت کړی محمد بوصيری دی _ دې فقير ځني پښتو _ هر چي ياد يې په دعا کا هغه کس دي هم په دين هم په دنيا نه زهيريږي (۴).

د اخوند درويزه د مخزن الاسلام په باب د فاضل استاد رشاد صاحب رايه دا ده: چي که ټول نظم نه وي، نو يوه برخه يې هرومرو نظم دئ. خو په ادبي تاريخ کي د مخزن پښتو برخه يو راز مسجع نثر بلل سوی دئ، چي رواجونکی يې د روښاني غورځنگ بنسټ ايښوونکی بايزيد روښان (۹۲۶ _ ۹۸۵ ق) دئ.

د اخوند دروزيزه بابا لخوا د برده قصيدې ژباړه د پښتو ژبي د پلار خوشحال خان خټک لخوا غندل سوې ده. دی وايي:

قصيده د بوصيري ترجمه کړې
عربي يې تر پښتو مضحک راوړې
هر هر بيت د قصيدې چي در مرجان دئ
په پښتو کي تر اوربشو لا ارزان دئ

د برده قصيدې بله پښتو ترجمه چي ماته معلومه ده، هغه د لوی احمدشاه بابا د علمي مشاور ملا شاهو نيکه د زوی ملا شيرمحمد هوتک ده. زموږ فاضل استاد اکاډيميسين رشاد صاحب يې د نورو پښتو ژباړو څرک هم راکوي او هغه د عبدالقادر خان خټک، ميا شرف الکوزي، محب الدين او نورمحمد دي (۵). برده قصيده په فارسي ژبه مشهور شاعر نورالدين عبدالرحمن جامي صاحب هم ترجمه کړې ده او وزيري هم. د بمبئ پوهنتون کتب خانه کي د عربي، فارسي او اردو خطي نسخو په تشريحي کتلاک کي د قصيدهٔ برده يوه نسخه معرفي سوې ده، چي وايي له اصل متن سره دغه دواړې ترجمې په حاشيو کي راوړل سوي دي. د دغي نسخې په وروستي مخ کي راغلي دي:

ای وزيری گشت اين منظومهٔ برده تمام
با حقايق پر دقايق جمله با لفظ عجم
سال تاريخش چو از پير خرد کردم سوال
گفت لفظ نظم شد تاريخ نی بيش و نه کم

د نظم ابجدي ارزښت ۹۹۰ ق (۸۳ _ ۱۵۸۲ ع) کيږي.

د جامي صاحب ترجمه په دې بيت شروع کيږي:

ای زياد صحبت يارانت اندر ذی سلم
اشک چشم آميخته با خون روان گشته بهم

او د وزيري دا په دې بيت پيليږي:

ای که گر (يه کردی) از همسايگان ذی سلم
سيل اشک آميختی در فرقت ايشان بدم

دا و د برده قصيدې په باب لنډ معلومات چي وړاندي سو.

**لمن ليكونه:**

۱. د ګلشن روه د کابل چاپ ته د فاضل استاد اکاډيميسين پوهاند رشاد سريزه _ ۵۱ مخ.
۲. د اما شافعي مزار په مصر کي د قرافه په ښار کي دئ (تذکره المحدثين _ اردو _ ۱۲۸ مخ).
۳. د بمبئ پوهنتون په کتابتون د عربي، فارسي او اردو د خطي نسخو تشريحي کتلاک ۲۰۳ مخ چاپ ۱۹۳۵ ع د خطي نسخو نوموړی کتلاک د خان بهادر عبدالقادر سرفراز لخوا ترتيب سوی او په ۱۹۳۵ ع کال د بمبئ پوهنتون لخوا په قايميه پريس کي چاپ سوی دئ. خان بهادر سرفراز د بمبئ په الفنسټون کالج کي او د پونې په دکن کالج کي د فارسي پخواني پروفيسر و. دغه کتلاک ما (هوتک) د مونتريال د ميګل پوهنتون د اسلامي څېړنو د انستيتوت په کتب خانه کي کتلی و (مې _ ۱۹۹۳ ع).
۴. وګوری مخزن: د پښتو اکېډمي پېښور يونيورسټي چاپ _ دوهم بيان _ ۱۰ مخ.
۵. ګلشن روه _ ۵۱ مخ.

عبدالمجید بابي

د لوړ درشل غازي امان الله شاه په واکمنۍ کښې

# د نښانونو ډولونه



کله چې په ۱۹۱۹ ز پردیز کال کښې د هیواد واکمن حبیب الله خان ووژل سو، د هغوی زوی لوړ درشل امان الله شاه د فبروري پر ۲۳ مه نېټه د واکمن کېدو څرګندونه وکړه. هغوی سمدلاسه د یرغلګرو سره د غزا سر ته رسېدو ته ملا وتړل او په دې توګه یې په ولس کښې ډېر ګرانښت وګاټه. هغوی چې د خپلواکۍ د لاسته راوړو په موخه د کابل د خلکو یوې لویې ټولنې ته خبري وکړې، د هیواد د خپلواکۍ له پاره د غزا د پیلېدو تر څنګ یې د وګړنیزو خپلواکیو او ټولنیزو برابریو په اړه هم شکلي څرګندوني وکړې. هغوی په دې توګه ولس خپل ملاتړ وګرځاوه او په ولسي سیل او خپل لوړ څراکت او همت سره یې د یرغلګرو څخه د هیواد د خپلواکۍ ګټلو ویاړ تر لاسه کړ.

د یرغلګرو څخه د ژغورلو وروسته د ولس د ژوندانه او د نامه د پیاوړتیا او غښتلتیا په لاره کښې لاس په کار سو، د ټولني د هري برخي او هر اړخ د رغېدو له پاره یې ځانګړې کړنلاري رامنځته کړې د دوهمو نمونو (القابو)، پېژند پاڼو، حکومتي چوپړونو، د پوهني د تر لاسه کېدو، پوځي چارو، سیاسي چارو، د ایکیو او پیسو د چارو سمون ته، د کرهنې، لاسي او ماشیني جوړونو او نورو نورو له پاره یې قوانین جوړ او د هغوی په رڼا کښې د هیواد په ګوټ ګوټ کښې په ښه سمون سره اړوندي چاري سر ته رسېدې.

د دغو ټولو تر څنګ د ویاړمنو سړیو له پاره د نښانونو د ورکړي کړنلاره هم جوړه او د دې کړنلاري له مخي به په بېلابېلو برخو کښې غښتلي او پیاوړي نازول کېده.

د دغو نښانونو د ډول او د ورکړې د څرګندتیا په برخه کښې همدا لیکنه په همدې توګه تاسو درنو لوستونکو ته وړاندي کیږي.

**لومړی ـ د لمر نښان:**

دا نښان د افغانستان د لویو او لوړو نښانونو څخه وُ، دغه نښان و افغانانو او د نورو هیوادونو څخه هغه چاته ورکول کېدی چې په سیاسي، پوځي او یا نورو ټولنیزو اړخونو کښې به یې ډېر لوړ چوپړ سر ته ورساوه او د هیواد او اولس د پیاوړتیا، درنښت او د همهغه مهال او راتلونکي برم له پاره به یې وړ تیا وښودل.

دا نښان بیا پخپل ځان کښې دوه ډوله وُ:

۱. د لمر اعلی نښان

۲. د لمر عالي نښان

د لمر په اعلی نښان چې به هر څوک وویاړل سو و هغوی ته به پنځه سوه جریبه مځکه ورکول کېده، خو د دې نښان د عالي ډول سره به دوه سوه پنځوس جریبه مځکه هم ملګرې وه. د مځکي د یادي سوي کچې تر څنګ به د لومړي ډول نښان سره شل زره روپۍ او د دوهم ډول سره پنځه لس زره روپۍ هم ورکول کېدې. په نښان د ویاړل

سوو مخکه د هغوی اولادونو ته رسېدای سوای خو د خرخولو واک یې نه سوای درلودلای. ولې باندنیو چې دا ویاړ تر لاسه کاوه هغوی ته ایکی او مخکه نه ورکول کېده .

د لمر د اعلی نښان برخي :

۱ . د لمر ټکی : د نښان آریزه برخه وه چې د خولی په سی اړخ کښې ځړول کېده .

۲ . د نښان د پیک په نوم برخه : چې پر اوږه او یا غاړه کښې به ځړول کېده .

۳ . دا برخه په غاړه کښې اچول کېده .

۴ . کوسی : چې اغوستل کېدی .

د لمر د عالي نښان برخي :

۱ . د لمر ټکی : د نښان آریزه برخه وه چې د ځگر په کیڼ لوري کښې به ځای پر ځای کېده .

۲ . د نښان د پیک په نوم برخه چې پر اوږه او یا غاړه کښې به ځړول کېده .

۳ . سپینه جغه چې پر خولی به ولاړه وه .

**یادونه :**

په ټولو رسمي مراسمو کښې به د دې نښان د ټولو برخو کارول د کوسي په گډون اړین وه .

## دوهم : سردار نښان :-

دا نښان د افغانانو او یا هغو باندنیو له پاره چې په سیاسي او یا پوځي برخه کښې یې ډېره لوړه وړ تیا لرلې وای او هغه د هیواد د همغه مهال او یا راتلونکي برم له پاره د ښېگڼو درلوونکې وای، په نېغه د پاچا او یا د هغه د لوري د بل ټاکل سوي چالخوا ور کول کېدی .

د باندنیو هیوادو واکمنو او یا نورو پوځي او ملکي سړیو ته چې د افغانستان سره د دوستۍ په لاره کښې به یې معنوي پېرزوینه تر سره کړې وای د دغه ډول نښان اعلی او یا عالي ډول به ور کول کېده .

د سردار د اعلی نښان برخي :-

۱ . د لمر ټکی : چې د ځگر په کیڼ اړخ کښې به ځړول کېده .

۲ . د پیک په نوم برخه : چې پر اوږه او یا غاړه کښې ځړول کېده .

۳ . سره جوغه چې د خولی د پاسه به جگېده .

د سردار د عالي نښان برخي :-

۱ . د لمر ټکی : د نښان آریزه برخه چې د ځگر په کیڼ اړخ کښې ځړول کېده .

۲ . د پیک په نوم برخه چې پر اوږه به ځړول کېده .

د سردار نښان دواړه ډوله د هغه د اړونده برخو سره په ټولو رسمي مراسمو کښې کارول کېدی، افغانانو ته د دې ډول نښان د ورکړې سره به هغه ځوک د سردار په نوم سره هم ویاړل کېده .

سردار نښان د هغه د وړونکي کورنۍ ته د یادونې له پاره کارول کېدای سوای خو د هغه زامنو نه سوای کارولای او نه یې د سرداری نوم ځانته ور کولای سوای .

## د خپلواکی یا استقلال نښان :-

د خپلواکی یا استقلال نښان په پوځي برخه کښې یو ډېر وتلی نښان ؤ، او د دې ښکارندوی ؤ چې گټونکی یې د خپلواکی د لاسته راوړوني او ساتني په برخه کښې ډېر لوړ چوپړ تر سره کړېدی . سربېره پر دې هغو پوځي سردارانو او خپله پوځیانو ته هم ور کول کېدی چې په پوځي ډگرونو کښې یې د ځانه وړ تیا ښکاره کړې وای، خپلې ټولی به یې د دښمن په وړاندې ښه اوډلې او منظمې کړې وې او یا به یې د جگړه ایزه ډگرونو پر ته د پوځي ښوونې او روزنې پر ډگرونو پوځیان ښه روزلي او پاللي وو .

دا نښان له پوځیانو پرته هغو کسانو ته هم ور کول کېده چې د جگړې پر مهال به یې د ملکي چاپېریال څخه د پوځ پر لور مخه کړې او هلته به یې وړ تیا څرگنده کړې وای .

د خپلواکی یا استقلال نښان هغو باندنیو پوځي سردارانو ته چې د افغانستان د پوځ په دننه کښې به یې چوپړ درلود او یا هغو ته چې د افغانستان د کړنلارو سره به یې په همغاړیتوب کښې ښه رول درلود هم ور کول کېدی .

د خپلواکی یا استقلال د نښان ډولونه :-

دا نښان پر دوه ډوله ؤ :

۱ . د پوځي برخي نښان .

۲ . د پوځي ډگرونو دباندي نښان .

هر یو د دغو نښانونو څخه څلور ډوله ؤ :

لومړی درجه :-

د یوه لمر او یوه پیک لرونکی ؤ چې لمر گی یې پر ځگر او پیک یې پر اوږه ځړول کېدی .

دوهمه درجه :-

بیا هم د یوه لمر او یوه پیک لرونکی ؤ، چې لمر یې پر ځگر او پیک یې په غاړه ځړول کېدی .

دریمه درجه :-

یوازي یوه ټوټه وه چي په غاړه ځړول کېده .

څلرمه درجه :-

بیا هم یوازي یوه ټوټه وه چي د ځګر پر کیڼ اړخ باندي ځړول کېده .

د خپلواکۍ د پوځي او ناپوځي نښان تر منځ توپیر یوازي دا وٌ چي د پوځي نښان پر مخ باندي دوې لڅي توري ور زیاتي سوي وې .

د جګړې د ډګرونو پر ته به پوځي لوړو سروالانو ته لومړۍ او دوهمه درجه نښانونه، نورو پوځي مشرانو ته دریمه درجه او منصب لرونکو ته به څلرمه درجه نښانونه ور کول کېده .

خو د جګړې په ډګرونو کښي پوځي رتبې په پام کښي نه نیول کېدې .

لومړۍ درجې نښان د خپل ځانه سره د کاله زر روپۍ، دوهمي درجې څلور سوه روپۍ، دریمي درجې دوه سوه روپۍ او څلرمي درجې سل روپۍ هم درلودې .

ولي باندنیانو ته یوازي نښان ور کول کېدی او د ایکیو د ور کړي څخه به بې برخي وه .

**د ستوري نښان :-**

دا نښان هغه چاته ور کول کېدی چي د هیواد له پاره به یې رښتینی چوپړ سر ته رسولی وٌ، دا نښان به یا په نېغه ټولواک ور ته سپاری او یا به د هغه د لوري د کوم بل چا له خوا ګټونکي ته ور کول کېدی .

دا نښان د ملکي چاپېر یال سربېره په پوځي برخه کښي او هم باندنیانو ته چي د هیواد د لوړو ښېګڼو په لاره کښي به یې ښه رول لوبولی وٌ ور کول کېدی .

دغه نښان د دوو برخو څخه جوړ وٌ :

یو یې د لمر ټکۍ وه چي د ځګر په کیڼ لوري کښي به ټومبل کېده او بله یې د پیک په نوم برخه وه چي پر اوږه به ځړول کېدی .

**وفا نښان :-**

دا نښان هغه چاته ور کول کېدی چي د ټولواک د واکمنۍ په پیل او یا د واکمنۍ په بهیر کښي به یې واکمن ته رښتینولي څر ګندول .

دې نښان دوې درجې درلودې :

د لومړۍ درجې سره سل جریبه مځکه، د دوهمي درجې سره ۵۰ او د دریمي درجې سره ۲۰ جریبه مځکه هم مل وه، د دې نښان پر ګټونکي دا پور وه چي مځکه یې نه سوای خرڅولای . نښان او دا مځکه به د ګټونکي وروسته د هغه په کورنۍ کښي اولادونو ته پاته کېدله، مځکه ګډه او د نښان څخه به د هغه مشر زوی د ټولواک په منلو سره کار اخیستلای سوای .

و باندنیو ته به د نښان تر څنګ د ټاکلي کچي په منلو سره د مځکي ایکۍ هم ور کول کېدې .

**د لوی خان نښان :-**

دا نښان هغه چاته ور کول کېده، چي د هیواد پالني په ولولو سره به یې د هیواد د لوړتیا له پاره لوړي چاري سر ته رسولې وې، او یا به یې د هیوادوالو تر منځ د ورورۍ او یووالي په برخه کښي ځان ستړی کړی وٌ .

دا نښان و ګټونکي ته خپله د ټولواک او یا د هغه د خوا د کوم بل چا په لاسونو ور کول کېدی .

د لوی خان د نښان ګټونکي ته ۴۰ جریبه مځکه هم ور کول کېده . مځکه به د نښان د ګټونکي تر مړیني وروسته د هغه د اولادونو تر منځ په وقفي توګه پاتېده او د نښان څخه یې مشر زوی د کورنیو چارو د وزیر په اجازه ګټه اخیستلای سوای .

د لوی خان نښان یوازي د لمر یوه ټکۍ وه چي د ځګر په ښي لوري کښي به ځای پر ځای کېدی .

**د شجاعت نښان :-**

دا نښان و پوځي سړیو ته د هغوی د وړتیا او ښه چوپړ پر بنسټ ور کول کېدی . دا نښان د ځګر په کیڼ اړخ کښي ځړول کېدی .

دا نښان هم د نښان د ګټونکي تر مړیني وروسته د هغه اولادونو ته پاته کېدی، او مشر زوی یې د جګړې د وزیر د منلو پر بنسټ د ځان له پاره کارولای سوای .




**د لمر د اعلی نښان څلور واړه برخې** : چې لومړۍ یې پر خولۍ او دوهمه یې پر اوږه تکوهل کېده، دریمه یې په غاړه کښې اچول کېده او څلورمه برخه یې پر اوږو اچول کېده.




**د لمر د عالي نښان درې واړه برخې** : چې لومړۍ یې پر خولۍ او دوهمه یې پر اوږه ځړول کېده او دریمه یې جوغه وه چې په خولۍ کې کارېده

د سردار اعلی نښان دوې برخې چې پر ځیګر او اوږه ځړول کېدې

د سردار اعلی نښان دریمه برخه سره جوغه چې په خولی کې نومبېده

د سردار عالي نښان برخي چې پر خیگر او اوږه خپرول کېدي

د خپلواکی لومړی درجه نښان

د خپلواکی دوهمه درجه نښان



د خپلواکۍ څلرمه درجه نښان

د خپلواکۍ دریمه درجه نښان او شجاعت نښان

د ستوري نښان او د وفا لومړی درجه نښان

د وفا دوهمه او دریمه درجه نښان

✪ ډاکټر بسم الله امیر

# د میرزا حنان بارکزي

# دېوان

یو وخت د کابل د ادبیاتو پوهنځي ته د همدغه پوهنځي یوه محصل د حنان بارکزي د دېوان یوه قلمي نسخه راوړه، د استادانو په سپارښتنه پوهنځي په بیه ترې واخیسته چې زه یې دلته (اد) نسخه بولم. وروسته ښکاره سوه چې دغه خطي نسخه په اصل کې د هغه عبدالغفار فراهي وه چې یو وخت په ولسي جرگه کې د خپلي سیمي وکیل و، په هر شان دا یوه ارزښتمنه نسخه وه او ما د حنان بارکزي له هغه دېوان سره پرتله کړه او د "وږمې" په مجله کي مي یوه مقاله پرې ولیکله چې په کال ۱۳۳۶ پښتو ټولني خپور کړی دی او زه یې دلته (پ) نومم.

کله چې مجله د چاپه راووته، ما یې یوه گڼه له ځان سره واخیسته او مرحوم پوهاند حبیبي ته ورغلم، دی هغه وخت د تاریخ ټولني رئیس و، ده چې د مجلې پاڼې راواړولې او د حنان بارکزي دېوان د قلمي نسخې په باب زما مقالې ته چې راورسېد او په دې بیت یې سترگي ولگېدې:

(پ): اعتماد په آبادي مه کړه "حنانه"
دا جهان څه بنیاد نه لري کچکول دی

(اد): اعتماد په آبادي مه کړه "حنانه"
دا جهان څه بنیاد نه لرئي کچول دی

نو راته کاته یې چې: "په کندهار کي کچولول خرابولو ته وایي، دېوان یې راکچول کی، یعني دېوال یې را خراب کئ". بیا یې وویل چې دغه خطي نسخه د لا زیاتي څېړني له پاره یوه ښه موضوع ده. ما د خدای ښښلي پوهاند حبیبي له وینا سره سم د دغي خطي نسخې او چاپي دېوان په پرتله کولو لاس پوري کړ، په لمنو کي مې ټول واړه او غټ توپیرونه ښودل او خپلي یادوني مې پرې زیاتولې.

سم چې د متن کار بشپړ سو او یوازي سریزه یې پاته وه، زه د لوړو زده کړو له پاره له هیواده ووتم. په زړه کي مي وچې دا وار وطن ته راغلم، مقدمه به یې لیکم، د ځانگي استادانو ته به یې ورښیم، که یې د چاپ وړ وگاڼه خپور به سي. په دې منځ کي په ملک کي اړودوړ راغی، گل گلمیري سوه، د وژلو او خرابۍ وخت سو، چور چپاو ونښت.

زما کتابونه دوه ځایه وو، چې د نیابت په سلسله کي زموږ نیکونو ته بېلابیلو پاچایانو رالېږلي وو. زما د کتابونو یوه بله برخه په کابل کي وه. په زړه کي مي وچې دا ځل هیواد ته ستون سم گرد کتابونه به په یو ځای کي په کابل کي راغونډوم، خو تر دې ونه رسېده. هغه نو چې الماني سوه، چور او تاراج ونښت، په میدان کي مو هغه پر جوره کلا په توپو ولگېده، لوټي لوټي سوه کور مو له خاورو سره خاوري سو.

زما کتابونه او یادداشتونه چې په میدان کي وو، په غالب گومان بې د اور لگوني له پاره وړی وي او هغه چې په

کابل کي وو احتمال لري د کور کمن او نسوارو پوړي به ترې جوړې سوې وي چي په دې کي د "نیرنگ عشق" هغه انتقادي متن هم راځي چي ما ډېره خواري پرې کړې وه، همدغه شان د "حنان بارکزي دېوان" متن چي ما برابر کړی و.

له څو کالو مهاجرت وروسته مي چي ورور او ورېرونه بیر ته میدان ته ورغله او د کور په بیا ودانولو یې لاس پوري که، کوم ځای چي یې تر نړېدلي دېوال لاندي د حنان بارکزي چاپي دېوان میندلی و چي په منځ کي یې زما د هغې مقالې د مسودې څو پاڼې هم وې چي په (ورمه) مجله کي خپره سوې وه. اوس چي د میرزا حنان بارکزي یو بل چاپي دېوان لاس ته راغلی، په دې باره کي یو څه لیکل غواړم.

د حنان بارکزي دېوان دا ځلي په ۱۳۷۰ ش کال د محمد معصوم هوتک له سریزي، سمون او لغتنامې سره د کندهار حمدالله صحاف خپور کړی دی، چي زه یې دلته د (ه) په نامه یادوم.

د دغه دېوان بیا چاپولو ته ډېره اړتیا وه، ځکه هغه دېوان چي پښتو ټولني خپور کړی، زښته زیاتي تېروتني لري. سربېره پر دې د پښتو ټولني چاپ نیمگړی دی او په (ه) کي ډېر داسي شعرونه سته چي په (پ) کي نه دي راغلي.

هوتک د متن په برابرولو کي ډېر رېړ گاللي او تر وسي وسي پوري یې زیار کښلی چي یو سم متن لوستونکو ته وړاندي کړي. اعتراض اسانه دی، هر څوک یو څه ویلای سي. خو کار کول گران دي. هغه چاته داسي کارونه گران او سخت ښکاري چي پخپله متې راونغاړي او ورته کښېني.

د (ه) خطي نسخه د (اد) قلمي نسخې ته ډېره ورته ده، ځیني داسي شعرونه او ډېر داسي بیتونه چي په (پ) کي نه دي راغلي، او (اد) دواړو کي سته یا ځیني کلمې په (ه) او (اد) کي یو شان دي او په (پ) کي بل شان. زه به وروسته دغې برخي ته راوگرځم اوس به یو څو لومړنیو خبرو ته راسم.

هوتک د میرزا حنان یو بیت سند گڼلی، ټول هغه غزلونه چي له بیتو زیات وو. هغه یې له خپل ځایه ایستلي او د متفرقاتو برخي ته یې وړي دي. زما په نظر دا به ښه وه که چیري یې اشعار بې ځایه کړي نه وای او په خپل حال یې پرېښي وای. دا ځکه:

۱. په دې ښکاره درو نسخو کي یعني (پ) او (اد) او د (ه) قلمي نسخه کي د غزلو ځایونه تقریباً یو دي، په قول احتمال چي په اصل کي به هم همدغسي و. میرزا حنان نه دي ویلي چي هیڅ غزل مي تر اوو بیتو زیات نه دی.

۲. هوتک په سریزه کي مدعي دی چي دغه نسخه پخپله میرزا حنان لیکلې او یا کتلې او سمه کړې ده. که رښتیا هم داسي وي؟ نو بیا پکښې هیڅ ډول لاس وهني ته ځای نه پاته کیږي.

۳. دغه امانت موږ ته همداسي رارسېدلی دی، موږ باید بې ضرورته لاس پکښې ونه وهو. هوتک د سریزي په یو بل ځای کي وایي: "د متن غزلي مي په هر ردیف کي دننه د قافیې د لومړي، دوهم، دریم او حتی څلورم ماقبل توري په اعتبار سره اوډلي چي په دې ترتیب د اصل او چاپي دېوان د غزلو ترتیب وړاندي وروسته سوی دی، حتی غزلي مي د یوه ردیفه بل ته هم نقل کړي دي".

زما په نظر دغسي بدلون راوستل ضروري نه و، که سړي ته د یوې نسخې متن اصل ښکاریږي، هغه اصل دی، نو لاس وهل نه دي په کار، دلته شخصي ذوق او ځاني فکر ته ځای نه پاته کیږي.

د سریزي په یو بل ځای کي راغلي دي: "د متونو د برابرولو په وخت کي د شاعر د لهجې په پام کي نیول یو ډېر ضروري کار دی . . . د حنان د لهجې له مخي (چي) باید په لنډه (ي) وکښل سي، که د اوسني معیاري لیکدود (؟) په شان په اوږده (ې) د (چي) په شکل وکاږو د (چي یې) (۱) معنا ورکوي. دغه راز (کي)•که په اوږده (ې) یا په معیاري ډول د (کې) په بڼه وکاږو د (که یې) معنا ښندي . . . ما دا ټولي خبري په پام کي نیولي او متن مي برابر کړی دی".

دلته څو خبري دي:

۱. د میرزا حنان بارکزي له لهجې نه مطلب، همدغه لهجه ده چي موږ یې د کندهار لهجه بولو او که "مرت کلا" ځانته لهجه لري؟

۲. هوتک په خپله وایي چي دا خطي نسخه (چي) د (چه) په شکل، (یي) د (یه) په بڼه . . . کاږي. نو سړی څه پوهیږي چي د حنان په لهجه کي (چي) او که (چې) (؟) که چیري د هوتک د

کندهار د دې اوسنۍ لهجې له مخې داسي حکم کوي، نو بيا دا خان ته خبره ده .

۳ . بل دا ټکی، که (چي) وليکل سي، يوه معنا لري او که (چې) وليکل سي، دا بل مفهوم افاده کوي . زما په نظر دغه بحث زيات دی . هغه د چا خبره د وينا له سياقه ښکاريږي او سړی پوهيږي چي مطلب څه دی؟ تاسي وګورئ په عربي کي اعراب يعني حرکات او سکنات څومره مهم دي، خو که تاسي دغه عربي ورخپاڼي راواخلئ په يوه کي هم فتحه، کسره، ضمه او سکون نسته، خلک ورخپاڼي لولي، پرې پوهيږي چي دلته څه راغي . موږ ولي په لوی لاس خپله ژبه او ليک لا پسي ګرانوو؟ په دېرو ضروري ځايو کي به دغه ټکي ږدو، که نه، نه به يې ږدو . که (چي) همداسي وليکو، د کندهار خوا خلک به يې لولي، (چي) به يې تلفظ کوي، د نورو خوا خلک به يې لولي (چې) به يې تلفظ کوي او که مطلب (چه يې) و، (چې) به ليکو . ان که په وروستي حالت کي هم ټکي ورته نه وي، د کتاب او تحقيق خاوندان پوهيږي چي د (چي يې) يا ښه ده ووايم د (چه يې) لنډه بڼه ده . همدغه شان (کي) ته ټکي نه دي پکار، کندهاريان به (کي) او نور (کې) او مطلب (که يې) و، بيا به يې (کې) ليکو يا دا هم د (کي) په څېر، خکه لوستونکي خان ته ګوري او پر پوهيږي . (۲)

۴ . هوتک وايي چي د متن په برابرولو کي مي د ميرزا حنان لهجه په نظر کي نيولې ده، کله چي سړی متن لولي، دغه ټکي ته پوره پاملرنه نه ده سوې، لکه سړی نه پوهيږي چي د ميرزا حنان په لهجه کي (بايلو) و او که (بايلود) په متن کي کله يو ډول او کله بل ډول راغي :

زړه مي ستا په عشق کي بايلو نه يې غواړم
د کښتۍ ضامن هيڅ نه وي ناخدا (۳)
په هيڅ نفعه سود يې نه يم پوهېدلی
زړه مي بايلود بې موجبه الغياث (۴)

په (پ) کي (برخه) ده او په (ه) کي (بخره)، څه خبر چي د ميرزا حنان لهجه څنګه وه :

خطا برخه ازلي د آدمي ده
دا ميراث ور رسېدلی دی له پلاره (۵)
خطا بخره ازلي د آدمي ده
دا ميراث ور رسېدلی دی له پلاره (۶)

په دېرو پخوانيو متونو کي (وقت) راغي او (وخت) وروستنۍ بڼه ده . د دغه ديوان په (پ) او (اد) نسخو کي هم (وقت) دی خو په (ه) کي (وخت)، غالباً دغه کار هوتک کړی دی :

شوخي ستر ګي دلبر د خط په وخت که
په سبزه کي دا آهو له رمه رام سو (۷)
له "حنانه" په افلاس سوه مينه پاته
چي د وقت بتان ښايسته په زرو پلوري (۸)

دغه راز هوتک د (خلق) کلمه په (خلک) بدله کړې ده او د رديف له امله يې د غزلي ځای هم بدل کړی دی :

چي دي سوي دي د حسن په اور خلک
ستا له لاسه څخه ګډ سو په شور خلق (۹)

هوتک په ښکاره د ميرزا حنان د لهجې له مخي د (پرتي) پر ځای (پروتی) راخيستی :

پر ګردن يې ول ول نه دي پروتي زلفي
پر چندڼ دي ګرځېدلي ښاماران تور (۱۰)

خو دې ته ورته کلمې چي په (اد) کي مثلاً (پټي) پر ځای (پوټي) راغلي، په (ه) کي بيا (پټي) دي :

د سکوت مهر په خوله کيږده حنانه
مراد د پټي خولې حاصليږي په اخلاص (۱۱)
زما د زړه څونړ بزه په طلب کي
پټي ستر ګي مدام ناست يې لکه باز (۱۲)

هوتک زيار ويستلی چي د چاپي ديوان او قلمي نسخې توپيرونه وښيي، خو سره له دې هم دېر ځايونه ترې پاتي دي، يو څو يې دا دي :

هسي سوز د ميني اور په زړه کي راکړ
بې شربته د مرګ نه لري دوا (۱۳)
سوز د ميني هسي اور رابانديبل کړ
بې شربته د مرګ نه لري دوا (۱۴)

يا دا :

که څوک ما پوښتي چي څه دی د عشق زور؟
بل څه نه دي کړ بده دي په سره اور (۱۵)
که څوک ما پوښتي چي څه دی د عشق اور
بل څه نه دي کړ بده دي په سره اور (۱۶)

په دغسي مهم ځای کي هم راغلي توپیر ته اشاره نه ده سوې، دلته (زور) ځکه سم دی چي میرزا حنان غوندي شاعر د قافیې کلمه مکرره نه راوړي .

یا دا :

حذر څه وکړي "حنان" د عشق له ناره
چي مدام وي دا ور خلاص په سمندر (۱۷)
حذر څه وکړي حنان د عشق له اوره
چي همېشه دا ور خلاص په سمندر (۱۸)

یا دا :

ستا د عمر د دولت په مراد دلبره
همېشه کړم د پیرانو په مزار عرض (۱۹)
ستا د عمر د دولت په مراد دلبره
همېشه کړم د پیرانو په دربار عرض (۲۰)

باید وویل سي چي په همدغه غزل کي د یوه بل بیت د قافیې کامه هم (دربار) دی .

یا دا :

که مي ستر گي شي د وینو فواره
خونخور خیال یې نه راځي په ننداره (۲۱)
که مي ستر گي سي د وینو فواره
خونخور خیال یې بیا رانغی دوباره (۲۲)

کله که ان کوم بیت په یوه نسخه کي زیات وي، یادونه یې نه کیږي، لکه :

په دیدن که یې سېراب کړې ښه به وي
عاشقان د دیدار تږي تشنه لب ستا

دغه پاسنی بیت په (پ) کي نسته .

یا دا لاندي بیت چي په (پ) کي نه دی راغلی :

په زیارت به مي څراغ د خپلو بل وي
له رقیبه سره کړی دی جهاد ما

دغسي واړه او غټ اختلافونه نور هم ډېر دي، چي په (ه) کي یې نه دي ښودلي .

اوس به راسو د (اد) نسخې ته : مخکي مي وویل چي د (اد) او د (ه) قلمي نسخې بیخي سره ورته دي، ډېری ځایونه چي په (ه) او (اد) کي یو شان دي، په (پ) کي بل شان . ډېری بیتونه چي په (پ) کي نه دي راغلي په (اد) او (ه) کي سته . سره له دې چي د (ه) نسخه تر (اد) بشپړه ده، بیا هم د (اد) نسخې په مرسته هغه ځایونه روښانیږي چي په (پ) او (ه) دواړو کي سم نه بریښي یا مغشوش دي لکه :

که محرم دي د وصال نه یم هر گز
ستا له عشقه توبه گار نه یم هر گز (۲۳)
که محرم دي د وصال نه یم هر گز
د عشق په کار پښېمان نه یم هر گز (۲۴)

دې ته د (ه) په لمنه کي لیکل سوي دي : "دا مطلع په اصل او چاپي دواړو کي عیبجنه ده د روی مراعات نه دی پکښي سوی" . خو په (اد) کي د (وصال) پر ځای (رخسار) دی چي په دې حساب یې عیب ور کیږي . دا لاندي بیت (پ) نه لري او په (ه) کي داسي راغلی دی :

پر عذاب ژلفي تر نیمو کړې ښې دي
په خپل ځای کي تر سیم ښې ایسي بسیار کج (۲۵)

دا بیت په (اد) کي داسي دی :

پر عذار زلفي تر سمو کړې ښې دي
په خپل ځای کي تر سم ښه ایسي بسیار کج (۲۶)

ځیني داسي بیتونه په (اد) کي راغلي چي په (ه) او (پ) دواړو کي نسته، لکه دغه غزل چي (ه) له (پ) را اخیستي . شپږ بیته لري او مطلع یې دا ده :

د مهرویو د مخ هسي صفایي ده
چي وړې له افتابه روښنایي ده

په (اد) کي یې اووم بیت راغلی او هغه دا دی :

هغه ورځ چي ستا په عشق مي ابتدا کړه
تر که ما له خپله ځانه مدعا کړه

دغه لاندي بیت په (اد) کي زیات دی چي نه په (ه) که سته او نه په (پ) کي :

زړه یې ډک لکه غنچه سو له سرو وینو
هغه چا چي ستا د تنگي خولې هوا کړه

د دې وروسته غزل چي مطلع یې ده :

عشق د عقل له تدبیره تازه تر سي
چي نمناک سي خار د دې صحرا نشتر سي

یو بیت په (اد) یې زیات دی چي په (ه) او (پ) کي نسته او هغه دا دی :

د زړه خور نمایي څه هنر نه دی
چي جامه زړه سي چي استر سي

اوس به راسو لغتنامې ته له ښایسته زیاته وخته را په دې خوا چاپ ته د پخوانیو متونو د برابرولو پر مهال د کتابونو په پای کي لغتنامې هم راوړي . دا یو گټور کار دی، خو په دې برخه کي څو ټکو ته پام په کار دی :

۱ . ځیني کسان په دغه راز لغتنامې هم راوړي او بس هسي یې پر ډېر دي . ښه به دا وي چي ټول راوړي او هغه لغتونه هم راواخیستل سي چي معنا یې

خرګنده نه ده او یا له متن سره اړخ نه لګوي او د پوښتني نښنه ور ته کیښوده سي .

۲ . هغه لغتونه چي په لغتنامه کي راغلي بایده دي چي مخونه یې هم وښودل سي، په دې ډول خو به سړي وګوري چي یو لغت له متن سره سمون لري او که نه او بل که څوک دغه کلمه د بېلګي په توګه را اخلي، ځای به یې ورته ښکاره وي . له نېکه مرغه زموږ ځینو محققانو دا کار کړی دی، یعني مخونه یې ښودلي دي .

۳ . د لغاتو معنا راوړلو په برخه کي یوازي په نورو قاموسونو او فرهنګونو اتکاء کول سم نه دي، باید وکتل سي چي همدغه معنا له همدغه متن سره اړخ لګوي او که نه . ما چي د میرزا حنان نوې لغتنامه کته، یو په زړه پوري لغت مي تر سترګو سو او هغه (منډ) دی . دې کلمې ته د نورو قاموسونو له مخي لیکل سوي (پل، قدم، سراغ) .
بیا په هغه بیت پسي وګرځېدمچي (منډ) پکي راغلی او پیدا مي کړ هغه بیت دا دی :

که خبر وای دغه ستا له عشق له منډه
ما به کله مینه کړه په هسي منډه

لومړی (منډ) زموږ په سیمه (میدان) کي یوه ژوندۍ کلمه ده او هغي لاري ته وایي چي د واوري په منځ کي تېره سوې وي، ښایي پخوا به یې معنا عامه وه او هري لاري ته به یې (منډ) ویلي او اوس یوازي هغي لاري ته وایي چي په واوره کي تیره وي .

۴ . باید چي لغت په لغت معنا نه سي، یعني د یوه لغت له پاره یوه یا څو مفهومي کلمې راسي او یا یې معنا روښانه کړی سي، نه چي له اصله لغته یې معنا ګرانه وي . همدغه د میرزا حنان بارکزي د دېوان د نوي چاپ په لغتنامه کي (کچول) ته (کلوچ) لیکل سوي دي . ماته چي په همهغه اندازه (کچول) نا اشنا دی، (کلوچ) هم دی .

لمن لیکونه :

۱ . (چي) د (چي یې) لنډه بڼه بلل د تأمل وړ ده .
۲ . دغه تش یو نظر دی، که نه په دې اوس وخت کي د پښتو لیکدود په باب له پخوانیو پرېکړو سر نه ګروم او له ځانه څه نه باسم .
۳ . (هـ) ۲ مخ .
۴ . (هـ) ۲۱ مخ .
۵ . (پ) ۱۵۵ مخ .
۶ . (هـ) ۱۱۸ مخ .
۷ . (هـ) ۹۲ مخ .
۸ . (هـ) ۱۶۹ مخ .
۹ . (هـ) ۱۶۹ مخ .
۱۰ . (هـ) ۳۱ مخ .
۱۱ . (هـ) ۴۹ مخ .
۱۲ . (هـ) ۴۲ مخ .
۱۳ . (هـ) ۱ مخ .
۱۴ . (هـ) ۲ مخ .
۱۵ . (پ) ۲۲ مخ .
۱۶ . (هـ) ۳۲ مخ .
۱۷ . (پ) ۳۱ مخ .
۱۸ . (هـ) ۳۰ مخ .
۱۹ . (پ) ۴۸ مخ .
۲۰ . (هـ) ۴۳ مخ .
۲۱ . (پ) ۱۰۵ مخ .
۲۲ . (هـ) ۱۲۰ مخ .
۲۳ . (پ) ۴۰ مخ .
۲۴ . (هـ) ۴۳ مخ .
۲۵ . (هـ) ۲۲ مخ .
۲۶ . (اد)



✓ لېوني که هر څومره غښتلي وي د شپني وړ نه دي.
✓ څوک چي پر ټولو مهربان وي هغه د کینو نه په امن کي دي.
✓ د نورو خلکو د غلطیو لیدل مشکل نه دي خو د خپلو غلطیو لیدل مشکل دي.
✓ مار چیچلی له رسۍ هم داریږي.
✓ هغه ښځه چي د خپل میړه سره په خوښیو او بدو کي څنګ پر څنګ ولاړه وي د پادشاهۍ وړ ده.
✓ څوک چي د پیرودلو توان نه لري هغه د پلورنځي تر څنګ دریږي وایي چي هغه نه اخلم او هغه مي نه دي خوښ.

✿ - عبدالقدیم پتیال

# د افغانستان منظوم تاریخ

# د میر حیدر صاحبزاده

میر حیدر صاحبزاده د پښتو له لویو او پیاوړو ناظمانو څخه ګڼل کیږي، موږ که د پښتو ادب د نظم او ناظمانو په باب رغیږو، نو ښایي میر حیدر صاحبزاده په پښتو ژبه کې له ټولو ناظمانو څخه لومړی مقام وګټي، هم د نظم د کمیت په لحاظ او هم د کیفیت په لحاظ، ځکه چې موږ خو تر اوسه په پښتو ژبه کې داسې ناظم نه لرو چې هغه دې د میر حیدر صاحبزاده د نظمونو په تعداد نظم ویلی وي، یا ښایي وي به، خو موږ ته تر اوسه په پښتو کې د بل ناظم دونه نظمونه، نه دي رارسېدلي، لکه د میر حیدر د هغې دا .

که چیري په دقیق ډول د میر حیدر صاحبزاده ټول نظمونه وشمېرل سي، نو ښایي حد اکثر شمېر یې یو نیم لکو (۱۵۰۰۰۰) بیتونو ته او حد اقل یې یو لک و څلوېښت زرو (۱۴۰۰۰۰) بیتونو ته ورسیږي . ما خو چې تر اوسه د پښتو د نظم په باب مطالعه کړې ده، نو داسې بل ناظم مې نه دی موندلی چې هغه دې یو نیم لک بیته یا یو لک و څلوېښت زره بیته لیکلې وي، او بله خبره دا ده چې ارواښاد میر حیدر صاحبزاده د موضوعاتو له پلوه هم ډېر احتیاط کړی دی او دا ټول نظمونه یې پر ډېرو ښو ـ ښو موضوعاتو کښلي دي، ځکه یې نو زه په پښتو کې لوی ناظم بولم .

د ارواښاد میر حیدر صاحبزاده په باب د لومړي ځل له پاره استاد حبیب الله رفیع یو مقاله وکښه (یا ښایي ما "پتیال" به د بل چا لیکنه د میر حیدر په باب تر اوسه تر استاد رفیع وړاندې نه وي لیدلې) چې په هغه لیکنه کې یې د میرحیدر د ژوند په باب ښه مالومات راټول کړي ول او د ده څه نا څه آثار یې معرفي کړي ول، خو ټول نه، بیا ارواښاد فاضل استاد اکاډمسین پوهاند علامه عبدالشکور رشاد رحمه الله علیه د میر حیدر صاحبزاده پر مړینه یوه مقاله په کابل مجله کې کښلې وه، بیا ما (پتیال) په ارغند جریده کې په دوو برخو کې د میرحیدر د ژوند او آثارو په باب یوه مقاله کښلې ده او بیا ښاغلي عبدالمجید بابي په کندهار مجله کې د صاحبزاده په اړه یوه مقاله لیکلې ده، چې په هغو ټولو کې د ده پر ژوند او آثارو څه نا څه رڼا اچول سوې ده، خو بیا هم ځینو نوو لوستونکو ته چې هغه مقالې یې نه وي لوستلي، د میر حیدر ژوند لیک به ورته په زړه پوري وي، ځکه نو زه په ډېر لنډ ډول د دوی ژوند لیک په دې ډول کاږم :

ارواښاد میر حیدر صاحبزاده د فیض الله صاحبزاده زوی او پلرنی ټاټوبی یې کتواز و خو بیا دی د کندهار ولایت ارغنداو ولسوالۍ ته راغلی او په جوی لاهور کې یې واړول چې تر اوسه یې هم کورنۍ په جوي لاهور کې اوسیږي، ده د ژوند ډېره برخه په ښوونځیو کې په معلمي او سرمعلمي تېره کړې ده، کله چې ده د افغانستان تاریخ په منظوم ډول وکیښ، نو د وخت د حکومت له خوا په "کوبي" کې پنځوس جریبه ځمکه د انعام په ډول ور ګړه سوه . ما ته یې فقط دونه آثار مالوم دي :

۱ . د افغانستان تاریخ، په اویا زرو بیتونو کې .

۲. د اسلام مجمل تاریخ، چي په اوو زرو بیتونو کي یې لیکلی دی .
۳. پوره انسان یا پوره سړی، چي په اتلس سوه بیته کي راغلی دی .
۴. دوه سوه اویا بېلابیلي کیسې یې په پنځو زرو بیتونو کي کښلي دي .
۵. د شبلي نعماني (الفاروق) یې په پنځلس زرو بیتو کي ژباړلی دی .
۶. د کسب او کار تر سرلیک لاندي یې دوه نیم زره څلوریځي کښلي دي .
۷. په اتو سوو څلوریځو کي یې (ارسال المثل) د صنعت پر اساس راوړي دي .
۸. د اسلام پنځه بناوي یې په اتو سوو بیتو کي خوندي کړي دي .
۹. پښتو قدوري یې څو سوه بیته کي پښتو ته په منظوم ډول راژباړلې ده .
۱۰. دینیات یې په درو زرو بیتونو کي کښلی دی .
۱۱. بل اثر یې د (ادبیات) تر سرلیک لاندي دی، چي په هغه کي د شپې او ورځي مناظره، د غره او دښت مناظره، د غنا او فقر مناظره، د منشي او بزدل مناظره، د صبر او علم مناظره، د شرق او غرب مناظره چي تقریباً څلور سوه بیته ده او د گل گلاب او نرگس مناظره ده، (په دې استریو کي د کندهار د اطلاعاتو او کلتور ریاست لخوا د میر حیدر صاحبزاده څو مناظرې د (مناظرې) په نوم یو کتاب چاپ سو، چي په هغه کي د بیرغ او خېمې مناظره ۱۸ بیته، د پتنگ او شمع مناظره ۱۳ بیته، د ختیځ او لوېدیځ مناظره ۴۰۶ بیته، د منشي او سپه سالار مناظره ۳۳ بیته، د شپې او ورځي مناظره ۷۲ بیته، د غره او دښت مناظره ۵۱ بیته، د غنا او فقر مناظره ۹۱ بیته، د گلاب او نرگس مناظره ۳۵۲ بیته او د طبیب او منجم مناظره ۶۹۶ بیته چي د دغو نهو مناظرو شمېر (۱۷۳۲) بیته دی . (مناظرې، د میرحیدر کندهاري، د علامه رشاد بابا د سریزې (ج) او (د) مخونه) .
۱۲. تحفه الهاشمیه چي شپږ سوه بیته ده .
۱۳. څلوریځې، دا کتاب ماته د ارواښاد صاحبزاده زوی (محمد عیسی صاحبزاده) راکړی و، چي په هغه کي بېلابیلي څلوریځې وې او شمېر یې یو ولسو سوو ۱۱۰۰ ته رسېدی چي بیا ما په ډېر کړاو له اته سوه او پنځه اویا لمنلیکونو سره یو ځای راوایستې چي یوه لنډه کی سریزه مې هم پر وکښله .

د ارواښاد ناظم د کتابونو ځیني خطي نسخې د علامه رشاد بابا په کتابتون کي هم خوندي دي .

د افغانستان منظوم تاریخ ارواښاد میر حیدر صاحبزاده په اویا زرو بیتونو کي لیکلی دی او پر ډېرو برخو یې وېشلی دی، چي دغه وړه مقاله زه د دغه تاریخ پر یوه کوچنی برخه کاږم چي هغه د تېمورشاه او زمان شاه د ژوند او د دوی د سلطنت په باب ده .

د افغانستان د منظوم تاریخ دغه برخه چي د تېمورشاه او زمان شاه په اړه ده، قلمي نسخه یې د افغانستان د علومو په اکاډیمي کي خوندي ده، چي ما (پتیال) په ۱۳۸۱ لمریز کال کي له هغې څخه ځیني یاددښتونه اخیستي او دا دی ستاسو مخي ته یې ایږدم :

دغه قلمي نسخه چي د تېمورشاه او زمان شاه په باب ده، د علومو اکاډیمی د ریفرینس په څانگه کي خوندي ده . د کتاب پر وقایه په نسخ لیک داسي کښل سوي :

د افغانستان منظوم تاریخ
تېمورشاه او زمان شاه
په (۱۸۱) مخو کي
ناظم
سید میر حیدر
۲۴_۲_۱۳۳۹

د کتاب څانگرني په دې ډول دي :

ناظم : سید میر حیدر صاحبزاده .
لیکونکی : نامعلوم
د کتاب د نظم کال : ۱۳۳۹ لمریز
د لیکلو کال : نامعلوم
د لیک ډول : نیمه نسخ، خو د خطاطی د قانون له مخي یې نه نسخ، نه نستعلیق او نه هم ثلث بللای سو، بلکي په عامه اصطلاح ور ته عادي نسخ ویلای سو .
د کتاب کچه : اوږدوالی (طول) ۳۵/۵ سانتی، بر (عرض) ۲۲/۵ سانتی .
کاغذ : عادي ژړبخون کاغذ
د لیک رنگ : شین بخون
د مخونو شمېر : ۱۸۱

ټول کتاب یو سل و یو اتیا مخونه لري او ښه غوښنه بڼه لري، ما د قلمي نسخې د اصولو له مخې د کتاب د کرښو شمېر او بیا د بیتونو شمېر په دې ډول مالوم کړی دی :

| | |
|---|---|
| لومړی مخ : | ۱۹ کرښې . |
| دوهم مخ : | ۱۹ کرښې |
| نهم مخ : | ۱۹ کرښې |
| پنځه ویشتم مخ : | ۱۹ کرښې |
| پنځوسم مخ : | ۲۲ کرښې |
| پنځه اویایم مخ : | ۲۲ کرښې |
| سلم مخ : | ۲۲ کرښې |

یو سل و پنځه ویشتم مخ : ۲۲ کرښې .

اوس به موږ د کتاب د هر مخ د کرښو شمېر په منځني ډول (۲۰) شل کرښې وګڼو او (۲۰) چې په (۱۸۱) کې ضرب کړه سي نو پایله به یې (۳۶۲۰) درې زره شپږ سوه او شل کرښې راووزي، په دې حساب نو موږ ویلای سو چې د افغانستان د منظوم تاریخ دغه برخه (۳۶۲۰) درې زره شپږ سوه او شل نیم بیتیه یاني (۱۸۱۰) اتلس سوه او لس بیته ده او که ښاغلي څېړونکي د افغانستان د منظوم تاریخ په باب کومه لیکنه کوي، نو زه هیله لرم چې دوی به ددغه منظوم تاریخ د تېمور شاه او زمان شاه د دورې برخه اتلس سوه او لس او یا هم اتل سوه بیته وبولي .

د کتاب په پای کې د سید میر حیدر له نامه سره په لېند یو کې (فیضي) هم لیکل سوی دی چې دا د ارواښاد صاحبزاده تخلص ګڼل کیږي .

کتاب په ښه روان نظم لیکل سوی دی خو ځیني، ژبنی نیمګړتیاوي او ستونزې لري، ځینو ته نیمګړتیاوي ویلای سو او ځینو ته یې ستونزه .

ژبنی نیمګړتیاوي :

(۱) په ټول کتاب کې د (پ) پر ځای عربي (ف) راغلې ده چې په پښتو کې د (پ) پر ځای د عربي (ف) استعمال ما ډېر کم لیدلی دی او دې ته موږ نیمګړتیا ویلای سو، زه نه پوهېږم چې ارواښاد صاحبزاده ولي داسي کړي دي؟ د بولګې په توګه :

علیحضرت تیمر (۱) فیدا (۲) په داسي حال و
زر و سل فنځه (۳) فنځوست (۴) قمري کال و
یا لکه : قمري زر سل شفیتمه (۵) دا سنه وه .

ما خو چې تر اوسه د پښتو کوم زاړه متون او دېوانونه کتلي دي، نو چنداني او آن چې هیڅ داسي نه دي راغلي چې د (پ) پر ځای دي یې (ف) کارولې وي، ځکه چې د (پ) او (ف) استعمال خو په پښتو کې خپل خپل ځایونه لري او دا کومه ګرانه خبره نه ده چې موږ دي یې د استعمال په ځای کي ورک سو، نه په پښتو کي داسي لهجې سته چې په هغو کي دي د (پ) پر ځای (ف) ویل کیږي، حتی ډېر ځایونه اصلاً دغه د عربي (ف) استعمال ډېر سخت وي او زموږ پښتانه یې چنداني سمه نه تلفظوي او د (پ) تلفظ (pronunciation) خو ډېر آسانه دی، ښایي میر حیدر صاحبزاده به د یوې خاصي موخي له پاره دا کار کړی وي (والله اعلم باالصواب) .

(۲) همدا ډول ارواښاد صاحبزاده په خپل ټول کتاب کي هر ځای د (ږ) پر ځای د (ژ) توري کارولی دی، چې دې ته هم موږ ژبنی نیمګړتیا ویلای سو، ځکه چې (ږ) خو د پښتو یو خاص او سوچه توری دی او د (ږ) پر ځای د (ژ) کارول زما په نظر له پښتو سره یو ډول ناخواني ده، دا سمه ده چې په ځینو لهجو کي به د (ږ) پر ځای (ژ) ویل کیږي، لکه ځیني پښتانه چې دغه توری د (ږ) او (ژ) تر منځ تلفظوي او نه سمه (ږ) ورته ویلای سو نه سمه (ژ)، چې داسي تلفظ موږ د کوټې د پښتنو په ځینو لهجو کي لیدلای سو خو آر شکل یې (ږ) دی .

د ګړدود او لیکدود ژبه په ځینو ځایونو کي باید بېله وي، لکه په ځیني پښتني لهجو کي چې د (ښ) پر ځای (خ) د (ږ) پر ځای (ګ) تلفظیږي خو په لیکدود کي مثلاً (مونګ یا موګ) نه لیکل کیږي، بلکي (موږ) لیکل کیږي، یا (خار، خه، خوخ) نه لیکل کیږي، بلکي (ښار، ښه، خوښ) لیکل کیږي، خو ارواښاد میرحیدر د خپل منظوم تاریخ په دغه ټوله برخه کي ګړ دود او لیکدود سره ګډ کړي دي، مثلاً دي وایي :

نادر و مازندران لره لېژلی

دغسي (ژ) یې نو په ټول کتاب کي د (ږ) پر ځای کارولې ده .

(۳) دغه راز میر حیدر صاحبزاده په ټول کتاب کي د (ښ) پر ځای د (ش) توری کارولی دی چې دا هم موږ ژبنی نیمګړتیا بللای سو، ځکه چې (ښ) خو هم د پښتو یو خاص سوچه توری دی او د (ښ) په تلفظ سره د پښتو امتیاز (prerogative) زیاتیږي او دا د پښتو ژبې برتري ده پر ځینو نورو ژبو چې په ډېرو پرمختللو ژبو کي د (ښ) استعمال او تلفظ ډېر سخت دی او په همدې توسن په ژبو کي اوس دغه توری له منځه تللی دی، یا خو په (ش) سره تلفظیږي او یا هم په (خ) سره ویل کیږي . ماته یو وخت

علامه رشاد بابا وفرمایل چې زه یو وخت په هند کې د سانسکریټ ژبې په زده کړه بوخت وم او پر یوه پروفیسور مې درس وایه چې په سانسکریټ کې پروفیسوري کړې وه . علامه بابا زیاته کړه چې یوه روځ مې له خپل استاد څخه د یوه توري پوښتنه وکړه چې دا څه ډول تلفظیږي؟، ول باره مې استاد راته ویل چې دا په سانسکریټ کې داسې توری دی چې دا ۹۰۰ کاله نه دی تلفظ سوی، خو د تلفظ ادا یې د (ش) او (خ) تر منځ ده، علامه بابا ویل چې باره ما د (ښ) تلفظ ورته وکړ چې داسې تلفظ خو به یې نه وي، وې باره هغه پروفیسور راته وویل چې تې یو واري بیا تلفظ کړه، ول ما دوه درې ځله بیا ورته تکرار کړ، ول هیڅ یې زړه ته نه لوېدل او ډېر اریان و، ویل یې چې دا په نهه سوله کاله چا نه دی تلفظ کړی او نې تلفظولای سي، دا تا څنګه تلفظ کړ؟ ول ما ورته ویل چې (ښ) توری په پښتو کې سته او ډېر پښتانه یې په اصلي شکل تلفظوي . نو دا د (ښ) خاصیت دی چې په پښتو کې اوس هم په ځینو لهجو کې په آر شکل تلفظیږي .

دا سمه ده چې د (ښ) لرغونی شکل (ش) دی، لکه علامه رشاد بابا چې وایي :

(ښ) ږغ چې دی، دا (ښ) په اوستا کې هم موجود و، په یو انګرېزي رسم الخط کې هم موجود و، او اوس په سلاوي ژبه کې هم پاته دی، سلاوي ژبې یې ګرده لري، (ښ) پښتو هم تر اوسه ساتلی دی و اما تر ټولو قدیم شکل یې د (ش) په شکل باندي په اویستا کې، مثلاً په اویستا کې ایژده سبزشه وایي، هلته ښه موجود دی، مثلاً (ښ) په سانسکریټ کې موجود دی، په دیوانګري کې یو خاص شکل لري، هغه ورته استعمالیږي، د (ښه) او (شه) تفاوت هلته په ګرافین کې موجود دی .

د کندهار په لهجه کې (ښ) محفوظ دی، اما په دې نورو لهجو کې د (ښ) د حذف مثالونه په هندي ژبو کې هم سته . (کندهار مجله، د ۱۳۸۱ لمریز کال د سلواکې او کب ګڼه، د علامه رشاد بابا مرکه چې د ګوربت مجلې څخه یې په مننه رااخیستې ده، ۸۶ _ ۸۷ مخونه) .

اما اوس خبره دا ده چې دغه د (ښ) ږغ عمومیت موندلی دی او څه لرغونی اصالت هم لري او موږ که زاړه متون او دېوانونه وګورو نو د (ش) د توري پر ځای (ښ) کارول سوی، دا به ښه وای، چې د میر حیدر صاحبزاده په کتاب کې د (ش) پر ځای (ش) کارول سوی وای .

اروابښاد میر حیدر صاحبزاده په دې ډول د (ښ) پر ځای (ش) کارولی دی :

هغه وخت چې احمدشاه کبیر شاغلی

بله بولګه یې :

قندهاریان دلته له غره کشته راغلي

**په منظوم تاریخ کې ستونزې :**

(۱) د ستونزو یادونه ځکه کوم چې دا نیمګړتیاوې نه سو بللای، بلکې ستونزې ورته ویلای سو چې لوستونکي له مشکلاتو سره مخ کوي، البته هغه لوستونکي چې له دغه راز لهجې سره نا اشنا وي، مثلاً میر حیدر صاحبزاده په ټول کتاب کې د (ځ) پر ځای د (څ) توری کارولی دی چې دې ته موږ نیمګړتیا نه سو ویلای، ځکه چې که موږ زاړه متون وګورو په هغو کې هم اکثره ځایونه د (ځ) پر ځای (څ) کارول سوې ده، لکه اخوند قاسم چې تر ۱۰۷۲ هـ ق کال وروسته یو کتاب د "فواید الشریعه" په نوم وکیښ او ډېر ځایونه یې د (ځ) پر ځای (څ) استعمال کړې ده، یا لکه ملا ګلاب اخوند چې په ۱۱۷۶ هـ ق کال کې له عربي څخه قدوري په پښتو وژباړله هم یې د (ځ) پر ځای (څ) کارولې ده او په ځینو زړو دېوانونو او اشعارو کې هم دغسې بیلګې موندلای سو او دغه د (څ) پر ځای د (ځ) استعمال (Utilisation) یو ډول رواج پیدا کړی و، ځکه نو د میر حیدر صاحبزاده په کتاب کې د (څ) استعمال ته نیمګړتیا نه سو ویلای، بلکې ستونزه په دې خاطر ورته ویلای سو چې ځینې لوستونکي د نابلدتوب له وجې له مشکل او پوښتنې سره مخ کوي، لکه :

زر و سل فنځه فنځوست قمري کال و

یا لکه :

چې څواب (ځواب) یې ورله ورکړ تیمر شاه

(۲) دغه راز په کتاب کې د (ژ) پر ځای (ز) کارول سوې ده چې دا هم په لهجه پورې تړلې ستونزه ده، ځکه چې میر حیدر صاحبزاده د کتواز واو عموماً د زابل، غزني او دغسې نورو سیمو په لهجو کې پښتانه تل د (ژ) پر ځای (ز) تلفظوي، پخپله که اوس هم د میر حیدر صاحبزاده له زوی (محمد عیسی صاحبزاده) سره کښینو، نو د (ژ) د تلفظ پر ځای به موږ د (ز) تلفظ څني واورو، یا که د زابل له یو کس سره خبري کوو، نو هر ګړی ښایي د (ژ) پر ځای د (ز) تلفظ څني واورو .

میر حیدر ناظم د (ز) توري په دې ډول کار کړی دی :

دوی وزلی (وژلی) په دې شفه نادر افشار و
د میر حیدر صاحبزاده د منظوم تاریخ د دغي برخي (د تېمورشاه او زمان شاه په باب) د کتاب لومړی مخ په دې ډول پیلیږي :

هغه وخت چي احمدشاه کبیر شاغلی
نادر و مازندران لره لېږلی
د علیحضرت رتبه ملکی وه داسي پاکه
خلور زره پښتانه داسي وکړي (۶)
دا فیاوړی (۷) چي روان فه دغه لور و
خلور زره ورسره د خپل کام (۸) سفور (۹) و
ابشیک اقاسي ده له طرفه د ټولواکه
چي زمریان یې په جنگو کشي ومت (۱۰) کړي

د کتاب دوهم مخ په دې ډول شروع کیږي :

یو زر یو سل دوشفېتم کال د هجرت و
غازي کړی خراسان ته عظیمت و
د هرات شهر یه (۱۱) په خپل ملک ده کشې ایستی
بیا ده عسکر مشهد لره وروستی

د کتاب له ستونزو څخه یوه دا هم ده چي ډېر ځایونه وزني یا سېلابي ستونزي لري .
د کتاب سرلیکونه په دې ډول دي :

۱ . ولادت د شهزاده تیمر (۱۲) شاه .
۲ . ړمبی (۱۳) گوزده د شهزاده تیمر په قندهار کشي .
۳ . دوهم سفر د شهزاده تیمر لوري د هند په عمر اوولس کلني کشي .
۴ . مقرر بده د شهزاده تیمر په حکومت د هرات .
۵ . ایراده (۱۴) د ده لوري ده قندهار ته .
۶ . کشي ناسته (۱۵) د سلېمان شاه په کندهار کي .
۷ . خبر بده د شاه سلېمان له راتگ د شهزاده تیمر څخه .
۸ . مور د اعلیحضرت تیمر شاه څوک وه؟
۹ . ورونړه (۱۶) د تیمرشاه .
۱۰ . شځي (۱۷) د تیمرشاه .
۱۱ . زامن د تیمرشاه .
۱۲ . لونړه (۱۸) د تیمرشاه .
۱۳ . نقل کېده د پایتخت له قندهاره کابل ته او تعین د کوځو په نامه د اراکینو .
۱۴ . شروع له لوري د بالاحصار
۱۵ . لیژل د تیمرشاه برخوردارخان او فردوست خان (۱۹) شهر ده بلخ ته .
۱۶ . عدم رسمیت حافظ شېرمحمد خان در عهد تیمرشاه (۲۰) .
۱۷ . یو خیال د بدو کول اعلیحضرت تیمرشاه لخوا د فیض الله خان خلیل په فیشور (۲۱) کي او مرگ د ده .
۱۸ . توجه اعلیحضرت تیمرشاه لوري ده ملتان ته او سرزنش د شکانو (۲۲) .
۱۹ . ترټنه ده حکمران ده بخار، له لوري د تیمرشاه .
۲۰ . فتنه (۲۳) د آزادخان صوبه دار ده کشمیر په ۱۷۸۶ میلادي کشي .
۲۱ . وفات د اعلیحضرت تیمرشاه او ناجوړي د ده فه فیشور کي او وفاتیه په شهر د کابل کشي .
۲۲ . کشي ناسته ده اعلیحضرت زمان شاه په تخت د پاچاهي باندي (۲۴) په سنه ۱۲۰۷ .
۲۳ . مراسم د تاج فوشی د اعلیحضرت زمان شاه .
۲۴ . جشن د ناستیه (۲۵) د اعلیحضرت شاه زمان او ورکړه ده القابو .
۲۵ . راتگ د نماینده ده پاچا (۲۶) د بخار دربار ده کابل ته .
۲۶ . د فاره (۲۷) د تهدید د شهزاده همایون .
۲۷ . اعلان د سلطنت همایون په قندهار کشي او ملقب کېده د ده په همایون شاه سره .
۲۸ . او ماتیه (۲۸) د شهزاده همایون .
۲۹ . تگ د اعلیحضرت زمان شاه، لوري د پنجاب (۲۹) او ده لاهورت .
۳۰ . راتله د اعلیحضرت زمان شاه له پنجاب (۳۰) کابل ته .
۳۱ . مقرربده د سلطان قیصر په ولایت د هرات .
۳۲ . راگرزبده د ټولواک له هرات (۳۱) فر لاره د کابل فیشور او پنجاب فه عزم ده پاره ده ورکېدو ده انتزاع ده سکانو . (۳۲)
۳۳ . ظهور سیاست ناپلیون (۳۳) فه شرق میانه گشي او اقدامات د شهنشاه ده افغانستان فه برابري د هغه کشي .

۳۴ . تفصیل د راتگ د محمد علي خان نماینده د بریتانیا مملکت د ایران ته .

۳۵ . متن سیاسي (۳۴) ده کپتان سرجان مالکم سفیر د برطانیه فه دربار ده ایران کشي .

۳۶ . راتگ د عرضي د شجاع الملک سلطان فیشور په قندهار کشي حضور ده پاچا ته .

۳۷ . راتگ د اعلیحضرت زمان شاه له قندهاره کابل ته او له کابل فیشور ته .

د میرحیدر ناظم د منظوم تاریخ دغه برخه په یادو سوو اووه دېرش سرلیکونو پای ته رسیږي او تر هر سرلیک لاندي هره پېښه په تفصیل سره بیان سوې ده .

**لمن لیکونه**

۱ . تېمور
۲ . پیدا
۳ . پنځه
۴ . پنځوس
۵ . شپېته
۶ . مراد (وګړي) دي. ښایي دا به د کاتب سهوه وي .
۷ . لکه چي ما وړاندي هم یادونه وکړه چي اوراښاد صاحبزاده په خپل کتاب کي تقریباً ټول ځایونه د (پ) پر ځای (ف) کارولې ده نو پر همدغه بنسټ (پیاوړی) یې هم په (فیاوړي) کښلی دی .
۸ . قام یا قوم چي یوه عامه اصطلاح ده او (کام) خو چنداني معیاري نه بلله کیږي او بل له (تالو) سره هم ټکر پیدا کوي. که څه هم په عامه لهجه موږ وایو چي (په کام څه شي دی؟) خو په معیاري لیکدود کي باید د (کام) پر ځای (قام یا قوم) وکښل سي .
۹ . سپور .
۱۰ . مات .
۱۱ . یې .
۱۲ . تېمورشاه (البته د تیمرشاه کارول به لهجوي توپیر وي) .
۱۳ . لومړی، اول یا ړومبی، چي دا وروستی کلمه په پېښور کي زیاته مروجه ده .
۱۴ . اراده، نیت، قصد، عزم .
۱۵ . کښېنستل یا کښېناستل .
۱۶ . وروڼه، د (ورونړه) شکل په پېښوري لیکدود کي کاریږي .
۱۷ . ښځي، (ما وړاندي هم یادونه وکړه چي اوراښاد ناظم د (ښ) پر ځای (ش) او د (ځ) پر ځای (څ) کاروي .
۱۸ . لوښي .
۱۹ . فردوس خان .
۲۰ . په دې سرلیک کي لکه چي پر اوراښاد صاحبزاده د پاړسو اغېز سوی دی ځکه چي پخوا خو دا یو ډول عادت او موډ و چي یو دم به یې په پښتو، پاړسو راګډه کړه او هغه د علامه رشاد بابا خبره میرزا قلمي به ځني وسوه. خیر دا خو د وخت جبر وا او د واکدارو واک و چي پاړسو په زرو تلل کېده خو پښتو چا په باک لا هم نه راوړله، خدای ﷻ دي وکړي چي خلک مي ګنهګار نه کړي چي ګواکي پر اوراښاد ناظم به مي نیوکه کړې وي، بلکي دا مي هسي یو مثال راوړ چي پر پښتو د پاړسو دونه ژور اغېز پروت و .
۲۱ . پېښور یا پېښاور یا پرښاور .
۲۲ . مراد (سکان) دي، ښایي دا به د کاتب غلطي وي .
۲۳ . فتنه .
۲۴ . دلته بیا په کتاب کي د معمول خلاف (په) په خپل اصلي شکل راوړه سوې ده .
۲۵ . د ناستي .
۲۶ . دلته هم (پ) په آر شکل استعمال سوې ده .
۲۷ . دپاره .
۲۸ . ماته .
۲۹ . دلته هم (پ) په اصلي ډول کارول سوې ده .
۳۰ . دلته دا یوازي (ت) د (ته) مانا لري چي په پښتو زړو متونو کي هم دغه د وروستی لاحقې (ه) استعمال کم دی .
۳۱ . بیا هم (پ) په آر ډول لیکل سوې ده .
۳۲ . بیا هم وروستی موښتې (ه) ځني حذف سوې ده .
۳۳ . دلته سکان په خپل آر شکل راوړل سوي دي .
۳۴ . دلته بیا هم پاړسو په ګډه سوې ده .
۳۵ . بیا هم د پاړسو اغېز .

حیات الله رفیقي

# په ټولنه کي د ادب او ادیب ونډه



دا یو څرگند او ښکاره حقیقت دی چي هره ټولنه خپل ملي، ژبني، تاریخي، فرهنگي، کلتوري او ادبي ویاړني او افتخارات لري چي دا ویاړونه په هره ټولنه کي په خپل سر او تصادفي ډول منځته نه راځي، او نه تر اوسه پوري په نړۍ کي داسي یوه ټولنه پیدا سوې ده چي بېله ولسه دي دا ویاړ او ویاړني لاسته راوړي، ځکه چي ټولنه د خلکو او پر گنو څخه جوړه ده بېله خلکو څخه ټولنه هیڅ مفهوم نه لري.

چي ښایي بیا په همدغه ټولنه کي وتلي اشخاص، اتلان، پوهان، عالمان، ادیبان، شاعران، هنرمندان، لیکوالان، سیاستمداران، دیني او مذهبي رهبران، جنگي او نور ستر شخصیتونه په هغمهغو ټولنو کي رامنځته کیږي. دا هم باید وویل چي همدغه اشخاص په ټولنه کي هغه د وتلو اشخاصو په نامه نومل کېدای سي چي د خپلي ټولني او خلکو له پاره خدمت وکړي تر څو د همدې ټولنو د وگړو له خوا څخه شهرت ورکول کیږي او د لوړپوړو اشخاصو په نامه یادیږي.

همدا وړ اشخاص دي چي له یوې خوا دوی د ټولنو د خلکو د خوا څخه نور هم هڅیږي او هم دوی نور هڅوي او د خپلو خاې ناستو په حیث یې روزي چي په واقعیت کي دا جریان د ټولنو په منځ کي تقریباً یو طبیعي شکل غوره کړی دی او د ټولنو د رامنځته کېدو سره یو ځای راپیل سوی دی، او د ټولنو سره یو ځای پر مخ ځي او ټولني ژوندۍ ساتي.

چي دا ټول جریانات بیا د تاریخ جوړښت رامنځته کوي. ځکه نو موږ ویلای سو چي د انساني ژوند یوه ډېره مهمه ځانگړنه د ټولني روښنایي ځانگه ده چي په دې مهمه ځانگه کي د ټولنو فرهنگ، ثقافت، کلتور، ادب او داسي نور توکي راتلای سي چي دا څیزونه د هري ټولني په وده او پرمختگ کي لویه ونډه درلودلای سي.

هره ټولنه د خپلو شرایطو سره سم جلا خصوصیتونه او ځانگړ تیاوي لري چي دا ځانگړ تیاوي په خاص ډول په ادب او کلتور کي په څرگند ډول لیدل کیږي چي دا یو عیني واقعیت دی. د بېلگي په ډول زموږ په هیواد کي ادبي ښېگني د عشقي ادبیاتو په برخه کي: توري غټي ستر گي، نري شونډان، سور او سپین مخ ستایل کیږي. خو برعکس په افریقایي ټولنو کي بیا تک تور مخ، غټ شونډان په ادب کي یو خاص ځای لري او همدارنگه په کلتور کي هم داسي ډېري بېلگي سته چي د هر هیواد د ټولنو په خواصو پوري اړه لري.

چي دا بېلتون او جلاوالی د ادب او کلتور په برخه کي یو عیني واقعیت دی چي د دې ټولو خبرو په لړ کي د یوې ټولني ادبي بهیر د هغه ټولني د خلکو د ژوند په ډول، جغرافیایي چاپېریال پوري په عمومي ډول تړاو پیدا کوي او په ځانگړي ډول د دې ټولنو د ادبي بهیر هڅو ته بیا د هغې ټولني په ادبپوهانو، لیکوالانو، شاعرانو او نورو فرهنگپالو او د کلتور په خاص تحرک او ډنامیزم پوري تړاو پیدا کوي.

کوم وخت چي په یوه ټولنه کي د تاریخي اړتیاوو پر بنا د ادب او ادیبانو، شاعرانو او هنرمندانو د خوځښت او کار شرایط په ښه ډول رامنځته کیږي دلته نو بیا دغه لیکوالان، ادیبان، شاعران او هنرمندان د خپلي ټولني او ولس د ناخوالو پر ضد د ټولنو له منځه راپاڅیږي، د ادب او هنر په ژبه هغه ناخوالي د خپلي ټولني و خلکو ته انځوروي او ټولو پر گنو تې رسوي که څه هم دا ټولني د هغه هیواد د سیاسي

استبدادي رژيمونو تر ځغ لاندي وي يعني دا چي د خپل هيواد د سياسي تاريخ په نازکو شېبو کي واقع وي نو دغه فرهنگيان، ليکوالان، شاعران، اديبان او هنرمندان دا د خپل ځان دنده بولي چي د خپلي ټولني دا ناخوالي په ادبي ژبه د سمبولونو په کارولو سره تر خپلو خلکو پوري ورسوي او هغو ته اگاهي ور کړي .

تر څو خپل رسالت د خپل ولس په وړاندي او اديب خپل اهميت د يو مهم حقيقت و خپلو ټولنو ته وروپېژني او دا هم خپل ولس ته ور وفهموي چي ادب او اديب نه دا چي د خپل ولس او ټولني څخه جلا دي بلکي د خپلي ټولني او ولس يو ډېر ښه او مهم لارښود هم دی، ولي چي د ادب او اديب ونده د ټولني په ټولنيز تکامل او چټک پرمختگ کي يو خاص ځای لري .

اديب - شاعر او هنرمند کولای سي چي د خپل خلاقه قدرت په ځواک د خپلي ټولني ساړه او مړژوانده احساسات او عواطف راژوندي او وهڅوي او په هغه ټولنه کي يو ژوندی او رغنده خوځښت رامنځته کړي چي البته د دې کار ښه تاثير او وړتيا د اديب، هنرمند او شاعر په مهارت پوري اړه لري چي البته دا حرکت د يوه مناسب وخت په شپول کي تر سره کېدای سي .

مثلاً که يوه ټولنه د خپلو حقوقو څخه په يوه او بل نامه محرومه کيږي دلته هم د ادب او اديب دا يو ټولنيزه دنده ده چي د ادب او هنر په واسطه د خپلو پرگنو ذهنيتونه د خپلو حقوقو د لاسته راوړلو له پاره راوهڅوي او خپلي غوښتني ښېله ډاره وغواړي او په ټولنه کي يو اړخيز عادلانه تحريک او خوځښت رامنځته کړي او په ټولنه کي د نوي خوځښت يوه نوې ساه وچلوي او د هغې ټولني د ټولنيزو او سياسي شرايطو سره سم بايد اديب، شاعر، هنرمند او ليکوال ځان په ډېره معقوله توگه ځان عيار کړي او بايد په دې لاره کي سنجيده، علمي گامونه واخلي تر څو د ټولني ناخوالي په ډېره درسته او معقوله توگه د ادب او هنر تر شپول لاندي داسي انځور کړي چي د يوې خوا د خلکو احساساتو ته درناوی وسي او د بله طرفه څخه د ټولني هڅونه رامنځته سي او اذهان يې روښانه کي او د ادب او اديب اهميت درک کړي چي د ټولني د ناخوالو د وتلو لاري هم په خپل ادب او هنر کي و خپلي ټولني ته وړاندي کړي تر څو د ادب او اديب ونده د ولس له خوا څخه په ټولنه کي مثبته وارزوي، نو که دا نه وي بيا د ليکوال، اديب او هنرمند رول په ټولنه کي يو منفي ذهنيت رامنځته کوي چي داسي منفي اديبان، هنرمندان او شاعران هم په ټولنو کي راپيدا کيږي چي خپل ادب، هنر او ليکني د ټولني د انحراف له پاره کوي او غواړي چي په خپلو گمراه کننده هنر، ادب او ليکنو باندي د ټولنو افکار منحرف کړي او ټولنه بلې خواته وهڅوي چي دا ډول ادب او هنر د ټولنو د پسماني سبب کيږي چي په ادب کي دا منفي ادب بلل کيږي او اديب، شاعر، هنرمند او ليکوال به په هغه ټولنه کي محکوم وي ځکه چي دا ډله خلک ادب، هنر او ليکوالي د خپلو ځانگړو گټو له پاره استعمالوي نه د ټولني د خدمت او بيداری له پاره، علاوه پر دې چي د ټولني د گټې له پاره نه وي بلکي د ټولنو د اغفال سبب هم کيږي چي دا ډول ادب، هنر او ادبيات د ټولنو د وگړو استازيتوب نه سي کولای، بلکي که د يوې خاصي او ځانگړو گټو د قشر استازي بلل کيږي او په ټولنه کي د ټولني د سياسي او ټولنيزو حرکاتو او خوځښتونو په مخ کي يو لوی خنډ هم گرځي د ټولنو د رکود او اختناق سبب کيږي، خو شايد دا رکود او اختناق څه دوام وکړي مگر لکه څنگه چي ټولني تحول کوي او وړاندي تگ کوي شايد د وخت په تېرېدو سره دا اختناق هم د منځه ولاړ سي او په ټولنه کي هيڅ امکان نه ليدل کيږي چي دا حالت به دوام وکړي خو صرف وخت اخلي . او د رکود د حالت څخه په کراره کراره توگه د ټولني و مثبت اړخ ته حرکت کوي د مثبتو ادبياتو او هنر له پاره لاره خلاصيږي تر څو په هغه ټولنه کي د سياسي بيداری لاره خلاصه کړل سي او مجبوراً نوي اديبان او هنرمندان رامنځته کيږي .

دلته به د ادب مثبت اړخ او منفي اړخ په دې لاندي انځورونو کي وگورو

**د اوسنيو ادبياتو ضرورت :**

دا يو حقيقت دی چي انساني ټولنه همېشه د ژوند د تکامل پر لوري خپل بهير طی کوي انساني ژوند و شاته نه گرځي بلکي مخ په وړاندي حرکت کوي د ژوند هر څه د نوي پړاو پر لور هڅيږي، او د پرمختگ پړاوونه وهي، ژوند شاته نه گرځي د انساني خصلت پر بنياد انساني ژوند د يوه ټيټ پوړ څخه و لوړ پوړ ته د يون په حالت کي دی او هر څه د نوښت پر لوري د ځان سره هڅوي، د انسان ژوند د زيربنا څخه نيولې بيا تر روبنا پوري هر څه په تغير کي دي، د زاړه د قالب څخه و نوي قالب ته حرکت کوي نو ادب او ادبيات هم د دې قانون څخه جلاکېدای نه سي، حتماً د زاړه شکل څخه و نوي شکل ته حرکت کوي دا هم بايد د ياده څخه ونه ايستل سي چي زاړه ادبيات او ادب پر خپل ځای هم د

اهمیت او ارزښت څخه خالي کېدای نه سي او د قدر وړ هم دی. څکه چي هر نوی شی د زاړه په بطن کي راټوکیږي .

نو ټوله ټولنیزي نوي پدیدې د تاریخي اوږده سیر په نتیجه کي د زړو پدیدو څخه رازیږي، په خپل سر په تصادفي ډول نه رامنځته کیږي. نو ادب او ادبیات همداسي دي .

که موږ د پښتو ادبیاتو د تاریخ پاڼي راواړوو، دا به ښه په زغرده ووینو چي د تېر وخت پیاوړي ادبیات لکه د حمید بابا اشعار چي نن ټول پښتون ټبر په هغه ویاړي او د پښتو ادب په روڼ اسمان کي د ځلانده ستورو اهمیت لري یوه ټوټه شعر واخلو او تر خپل ادبي چاڼ یې تېر کړو نو دا به څرګنده سي چي د ده شعر د ادب له نظره څونه بډای او زړه وړونکی دی .

مګر د ټولنیزو اړیکو او خوښښتونو له پلوه بیا کوم ټولنیز خوښښت نه لري، حال دا چي د اوسنیو ادیبانو شاعرانو او هنرمندانو په اشعارو کي بیا یو نوی ټولنیز خوښښت او کیفیت لیدل کیږي. د بېلګې په ډول که موږ د خدای بخښلي عبدالرؤف بېنوا صاحب یوه ټوټه شعر راواخلو او هغه وګورو لکه (غلی شانته انقلاب دی، بدلوي د زمانې رنګ). علاوه پر هنري او ادبي کیفیت باندي یو ډېر څواکمن ټولنیز کیفیت هم پکښې نغښتی دی چي و خپلي ټولني ته یو د خوښښت او د حق غوښتولو ذهن ورکوي .

لنډه دا چي اوسني هغه شاعران، ادیبان او هنرمندان چي د ټولني د ضرورت او اړتیاوو د غوښتنو انځورونه او انعکاسات د ادب په ښکلي او ښایسته انداز کي و خپل ولس ته وړاندي کوي او د ولس د اذهانو په روښانتیا کي ډېره ستره ونډه لري، د دوی د فکر او تخیلاتو ټولنیزي ناخوالي د ادب په ښکلي چوکاټ کي په ډېره هنري پیمانه انځوروي څکه چي د دې هنري انځورونو غوښتنه نن زموږ د ټولني ضرورت دی .





**په سور سالو پر بام ولاړې**
**امیل په غاړه کشوې د خلکو زړونه**

**یا د غاټول پر مخ شبنم دی**
**یا یې پر سره باڼ‌خو، خولې راغلي دینه**

احمد صمیم

## یوه دوستانه مشوره

د یوه لیکوال پر لیکنه یا د یوه شاعر پر شعر باندي کرکتنه د څو زاویو څخه کیږي.

د لفظ، معنا، ترکیب، ارتباط، مبتداوو خبر، تشبیه، استعارې، هدف او پیغام له مخي او سربېره پر دې په شعر کي د قافیوي عیب له حیثه څېړنه کیږي.

خو دا کار د اکاډمیکو خلکو له خوا په یوه اکاډمۍ کي صورت نیسي داسي اکاډمي چي د خلکو او علماوو باندي اعتماد وي او څوک یې د علمي لحاظه جواب ونلري.

هغه اکاډمي چي نقد لیکي د وظیفې له مخي یې لیکي، نه د شخصي عقدو له خاطره چي لکه بزیزکی مچ په هر چا پوري مبتلي او څوک سمي ځغښتا ته نه پرېږدي.

موږ باید په خپل سر د چا د لیکني یا شعر، آبرو ریزي ونه کړو، باید د تشویق او ترحم لاس د هغو پر سر ورتېر کړو، نه دا چي د انتقام له مخي په تونده لهجه په عام محفل کي بې له کوم مسئولیت څخه یو چاته سترګي رډې رډې کوو او هر هر څه وایو، که تاسو د ښه تنقید او تحقیق شوقیان یاست نو لومړی د یوې علمي تحقیقي اکاډمۍ په جوړښت کي هلي ځلي وکړئ. پر حکومت باندي دا تنقید وکړئ چي ولي دغسي اکاډمي په هر ولایت کي نه جوړوي؟ چي هم یې د ځای او معاش غم وکړي او هم د دې اکاډمۍ فتوا او فیصله یو ځای ته ورسیږي.

که ستاسو ډېر زړه نه دریږي نو لومړی د هغه لیکوال او شاعر سره په خصوصي توګه خبره شریکه کړئ او بیا یې نشر ته وسپارئ.

په درنښت

**- لیکوال :- علامه حبیبي**
- ژباړن - غلام سخي نوریوال

# تر ټولو پخواني مسافران په افغانستان کي

## یوه انګلیسي راهب څنګه وکړای سو د غزني لوی کتابتون وګوري؟

**تر لومړي جګړې پخوا د څو انګلیسي مسافرانو داستان**



په لومړۍ او دوهمه هجري پېړۍ کي چي د کابلستان او زابلستان پر مځکه لا رتبیلانو او لویکانو فرمانونه ورکول، او د اسلامي خلافت لمن تر دغه ځایه نه وه رارسېدلې، د افغانستان ښارونو او سیمو د خپل لرغوني مدنیت پاته شوني (میراثونه) ساتل. او د چیني زیارت کوونکو له تلو راتلو څخه ځرګندېده چي د سیمه ایزو دینونو او بودایي دین پاته شوني (میراثونه) د افغانستان په ختیځو او مرکزي ښارونو کي سته .

په همدغه زمانه کي یو انګلیسي راهب غزني ته راغلی، چي د هغه د راتلو داستان په اورېدو ارزي . په ښکاره توګه تر ټولو پخواني سړی دی چي له انګلستانه یې افغانستان ته سفر کړی دی .

دا چي له دغه داستان څخه زموږ د هیواد د یوه پخواني ښار د مدنیت او کلتور ځرګندونه کیږي، نو د انګلیسي کتاب په حواله کټ مټ راوړل کیږي .

د کالیفورنیا (سن جوز) مؤسسې په ۱۹۳۴ کال کي (د جیشر یون) په نوم په انګلیسي ژبه یو کتاب چاپ او خپور کړ چي د کتاب آره (اصلي) نسخه په عبري ژبه وه او انګلیسي ژباړه یې د انګلستان د کنتربري د کلیسا یوه راهب الکوئین کړې وه او دغه ژباړه د لومړي ځل له پاره په ۱۸۲۹ م کال د انګلستان په برستل کي چاپ سوې ده .

د جیشر یون په عبري ژبه دی، چي د ډېرو پخوانیو صحیفو (د تورات له صحیفو) څخه شمېرل کیږي، چي د نوي انګلیسي چاپ اوږده سریزه یې د دغه کتاب د ژباړونکي الکوئین حال هم بیانوي .

انګلیسي راهب الکوئن د شارلیمان (۷۴۲ _ ۸۱۴ م) مشهور پاچا له درباریانو څخه و، چي په پاریس کي یې د یوه پوهنتون بنسټ ایښی و، او دغه راهب د (۷۵۰ او ۸۰۰م) کلونو تر منځ د روز، استانبول او دمشق له لاري قزوین ته راغی، همدلته ورته یوه تکړه زاهد وویل چي :

"د جیشر د کتاب آره نسخه چي د لرغونتوب یادونه یې دوه ځایه په انجیل کي راغلې ده د غزني ښار په یوه کتابتون کي پرته ده" .

الکوئین له دوو ملګرو سره چي د یوه نوم جان و، د دغه کتاب د ژباړي له پاره د اصفهان له لاري غزني ته راغی، په دغه ښار کي (۳) درې کاله په یوه کرایي کور کي واوسېده، دی د غزني د کتابتون په اړه لیکي : چي دغه کتابتون یو ساتونکی درلود چي له ۴۵ کالو څخه یې دغه دنده تر سره کوله .

د کتابتون ساتونکی د الکوئین سره آشنا سو، الکوئین ته یې وویل : هو کې ! د جیشر د کتاب نوم د کتابتون په لړلیک کي سته مګر دغه ډېر ارزښت لرونکی کتاب د ځینو نورو لرغونو ارزښت لرونکو آثارو سره یو ځای د کتابتون په یوه برخه کي بند (قلف) پراته دي او کیلي یې د سلطنتي پانګوال سره ده . الکوئین د پانګوال سره هم وپېژندل چي د هغه په مرسته یې وکړای سول د جیشر د

کتاب خطي نسخه چې په نغښتلي شکل (۱۰) فوټه اوږدوالی او (۹) فوټه بر یې درلود ولیده . دغه خطي نسخه په ښکلي او روښانه لیک پر سپین پنډ مخملي کاغذ لیکل سوې ده او په کوم صندوق کې چې دا نسخه پرته وه ډېر ښکلی مګر زوړ دی .

د دغه کتاب سره یو ځای یوه بله نغښتلې کوچنۍ نسخه (د جیشر د صحیفې سرګذشت) تر سرلیک لاندې وه، په خپله د جیشر کتاب (۳۷) برخې او په یو بل صندوق کې یې یادداښتونه ساتل سوي وه، چې پخوانیو خلکو د جیشر د کتاب د مطالبو په اړه لیکلي وه او د (جیشر د صحیفې سرګذشت) نومې نسخه کې لیکل سوي وه چې جیشر د حضرت موسی ﷺ امسا وړونکی او ډېر نژدې سړی و .

الکوئین د جیشر د کتاب د ژباړې له پاره د غزني د پانګوال د لارښووني سره سم د هغه ښار لوی حاکم ته چې د کتابتون ټول واک ورسره و غوښتنلیک ولیکه، په پایله کې د ستري محکمې لخوا د امر مکتوب په دې ډول صادر سو :

"الکوئین او د ده ملګري اجازه لري چې د غزني د ښار د عامه کتابتون د جیشر د کتاب متن له عبري ژبې څخه انګرېزي ته وژباړي مګر بې له انګرېزي ژبې څخه بلې ژبې ته ونه ژباړل سي، او ژباړونکی به د کتابتون په دننه کې په داسې مهال کې د کتابتون د مدیر په وړاندې ژباړه کوي چې مدیر کافي وخت ولري" .

الکوئین وایي : چې یو نیم کال مې د کتاب په ژباړلو تیر کړ، د کتابتون مدیر د کتاب ځیني برخې پر مېز ایښوولې او موږ یې ژباړه کوله، مګر بېله ژباړې نور یادښتونه او کاغذونه د کتابتون مدیر راڅخه اخیستل او سوځول یې .

د ژباړې د پای ته رسولو وروسته یې هر څه چې ژباړلي مو وه واخیستل، وروسته له هغه چې موږ سوګند وکړ چې ژباړه به بل چا ته نه ورکوو او د دغه کتاب له ژباړې پرته مو نور هیڅ نه دي لیکلي، زموږ د کار پاڼې یې بیر ته راکړې، او د مسافرۍ لازم اسناد یې هم راکړل، تر څو له اوو کالو مسافرۍ وروسته د اصفهان او قزوین له لارې روم ته ورسېدم، او د کتاب ژباړه مې د پاپ حضور ته وړاندې کړه .

د غزني د کتابتون په اړه له دغه داستان څخه لاندې څو مادې څرګندېږي :

۱ . ذکر سوی کتابتون ځانګړی (شخصي) نه و، د ټولو خلکو او حکومت سره یې اړه درلوده .
۲ . کتابتون رسمي مدیر درلود .
۳ . کتابتون د یوه لړلیک لرونکی و .
۴ . ډېر لرغوني او ارزښت لرونکي کتابونه په کتابتون کې بند (قلف) او ساتل سوي وه .
۵ . په کتابتون کې نور لرغوني آثار هم وه، چې د موزیم شکل یې درلود .
۶ . د کتابتون د موزیم د برخې کیلي د ښار د پانګوال سره وه او د کتابتون مدیر ته نه ورکول کېده .
۷ . د دغه آثارو د کارولو اجازه د ښار د لوی حاکم او د محکمې د مشر سره وه .
۸ . د کتابونو په کارولو، وړلو ، راوړلو او ژباړلو کې پوره پاملرنه کېده .
۹ . په دغه کتابتون کې ډېر د پام وړ تاریخي آثار پراته وه .

لکه څنګه چې د جیشر د کتاب سره اړه لرونکې نغښتلي نسخه کې لیکلي و چې دا کتاب پخپله جیشر جوړ کړی او په دغه صندوق کې یې ایښی دی او وروسته د هغه زوی جیزر ته پاته سوی او د وخت شهزاده ګانو یې ساتنه کوله، د بابل د کلابندۍ او نیوني له پیښې وروسته د ایران د شاهانو لاس ته ورغی، په سلګونو کاله د دغه کتاب د ساتنې ځای د غزني ښار و . هغه شرحه چې د جیشر د کتاب د انګلیسي ژباړې په سریزه کې چاپ سوې وه، څرګندوي چې د غزني ښار په هغه وخت کې منظم کتابتونونه او سلطنتي موزیمونه درلودل، او په هغه وخت کې یې د موزیمونو او کتابتونو له پاره ښه د پام وړ ترتیبات درلودل .

همدغه داستان د اسلامي عصر په لومړیو کې د افغانستان د لوړ مدنیت او کلتور څرګندونه کوي .

### د توماکس هکس کورنۍ په کابل کې :

دوهم انګلیسي مسافر د اورنګ زېب د پاچهۍ په وخت کې پېژنو چې کابل ته راغلی و، او په بالاحصار کې ومړ . د هغه قبر د کابل د بالاحصار په ختیځه هدیره کې تر ۱۸۴۰ م کال پورې و .

د دغه مسافر یادونه په (پر افغانستان یرغل) نومې کتاب کې چې ډاکټر جیمس آتکنسن James Atkinson لیکلی و سوې ده .

دغه انگلیسي جراح ډاکټر چې د شاه نامي انگلیسي ژبې ته د نظم او نثر ژباړونکی دی د انگریز یرغلگر لښکر سره چې په ۱۸۳۹ م کال یې پر افغانستان یرغل وکړ راغلی دی او کتاب یې د اکسپیډیشن انټو افغانستان په نوم په ۱۸۴۲ م کال په لندن کې په ۸۲۴ مخونو کې چاپ سوی دی .

دا کتاب د افغانستان د همهغه وخت په اړه د پام وړ خبرونه لري. د یوه انگریز د قبر په اړه چې په ۱۶۶۶ م کال په کابل کې مړ سوی داسې لیکي :

"د کابل د بالاحصار د پېښور دروازې څخه دباندې سل گامه وړاندې په ختیځه هدیره کې مې د یوه وړوکې قبر سپین د مرمرو ډبرلیک ولید چې داسې پر لیکلي وه :

دلته د توماکس هکس د جان هکس او جودته چې د جان هکس ښځه وه د زوی مړی ښخ دی چې د ۱۶۶۶ م کال د اکتوبر پر ۱۱ مه نېټه مړ سوی دی، او په دې اړه یوه ارمني چې په کابل کې اوسېد ماته وویل :

دغه ډبرلیک د هدېرې په نورو برخو کې هم لیدل سوی، نو له دې څخه جوتیږي چې د هغه اصلي ځای په هدیره کې نه دی مالوم .

د تعجب وړ ده چې یو انگریز څرنگه د اورنگزېب په وخت کې کابل ته راغلی او همدلته ښخ سوی دی؟ له ډبرلیک څخه ښکاري چې توماکس هکس کوچنی و، ځکه چې د لویانو د قبرونو پر ډبرلیکونو د پلار او مور نومونه څوک نه لیکي . د آتکن سن له دغې لیکنې څخه څرگندیږي چې درې نیمې پېړۍ پخوا چې کومه کورنۍ د کابل د بالاحصار په بریدونو کې اوسېدله د هغوی یو کس د توماکس هکس په نامه دلته مړ او ښخ دی .

درېیم انگریز چې په ۱۷۸۲ م کال یې له هند څخه کشمیر او افغانستان ته سفر کړی فورستر Forster نومېد، د هند بیوگرافي د (۱۵۱ مخ) په حواله . نوموړی د ایسټ انډیا کمپنۍ کارکوونکی و، چې د کشمیر، کابل، هرات، ایران او کسپین بحیرې له لارې روسیې او انگلستان ته ولاړ. د هغه یونلیک د (له بنگال څخه سفر تر انگلستان پورې) په نوم په ۱۷۹۸ م کال خپور سوی دی، د (هندوانو افسانې او عادتونه) په نوم کتاب یې هم لیکلی دی، دی هغه وخت چې د مراته (؟) سفارت ته ورتی د هند په ناگیور کې مړ سو. فورسټر په خپله یونلیک کې کابل بالاحصار د (لوړ سر) په ډول یاد کړی او د خپل سفر حال یې پوره اوږد لیکلی دی .

**ویلیم مورکرافت په افغانستان کې :**

د نولسمې پېړۍ له لومړیو څخه هغه وخت چې د استعمارگر انگلیس قدرت په هند کې خپرېده، د ایسټ انډیا کمپنۍ مامورینو سره د افغانستان د خاورې د حال څرگندولو او مطالعې دلچسپي پیدا سوه، هغه مهال چې اعلیحضرت شاه زمان افغان پر لاهور یرغل وکړ، د ختیځ هند د کمپنیو پر مخورونکې یې ورېږدول، له همهغه وخته دی چې ډېرو انگرېزانو د سېلانیانو، سوداگرو او داسې نورو ډول ــ ډول جامو کې د افغانستان له خاورې څخه لیدنه کړې ده .

لومړی سیلانی چې په دغه وخت کې په افغانستان کې گرځېدلی او لوستني یې کړي، هغه یو لندنی ډاکټر د ویلیم مورکرافت William Moorcraft په نوم دی چې په پاریس کې یې د څارویو د پالنې په اړه ځانگړې زده کړې هم کړې دي . دی په ۴۹ کلنۍ کې د ختیځ هند په شرکت کې په کار بوخت سو، دا چې دی داسې سړی و چې تل به په پیښو پسې گرځېده په هند کې په داسې فکر کې سو چې د انگلستان د سوداگرۍ اړیکې د افغانستان له لارې د لوړې آسیا سره ونښلوي او هم د آسونو د سوداگرۍ له لارې د هند د آسونو نژاد د باختري سیمو د آسونو د نژاد په نښلولو سره برابر کړي .

مورکرافت د خپل دغه فکر سره د هند د انگلیسي مشرانو خوښه تر لاسه کړه، د سوداگرۍ له ځینو مالونو سره له کلکتې څخه راووت او له زرگونو ستونزو سره سره یې ځان لداخ او له هغه ځای څخه کشمیر ته ورساوه .

دی له کشمیر څخه کابل ته راغی او له کابل څخه شمالي ولایتونو ته تېر سو او له هغه ځای څخه بخارا ته ولاړ، د بېرته راگرځېدو پر وخت د ۱۸۲۵ م له بلخ څخه میمنې ته ولاړ، تر څو د اصلي آسونو نژاد تر لاسه کړي چې اندخوی ته راغی د محرقې په ناروغۍ اخته او مړ سو، چوپړیانو یې مړی د اوښ پر شا بلخ ته راوړ او د یوه دېوال تر شا یې ښخ کړ، او د لارې یو بل ملگری یې چې تریبک Trebeck نومېد هم له څو ورځو وروسته مړ سو، په مزارشریف کې یې ښخ کړ .

د مورکرافت د یونلیک یادښتونه د بنگال د آسیايي ټولنې لاس ته ورغلل او وروسته له ډېر سمون څخه په ۱۸۴۱ م کال د ویلسن لخوا چاپ سول .

د مورکرافت یونلیک د افغانستان، بخارا، لداخ او کشمیر د همهغه وخت د پاته په (۶۳) مخ کې

✿ د محب الله اسحاقي ژباړه
✿ پولسم څپرکی

# تابعیت

# Citizenship

د سیاسي علم او مدني علم تر منځ اړیکي د کل او جز غوندي دي. د دولت زیاتره نفوس د اتباعو څخه جوړ دی، نو دا سوال رامخې ته کیږي چې تبعه څوک دی؟ تابعیت څه مانا لري؟ څنګه تر لاسه کېدای یا لغوه کېدای‌سي؟ او تر ټولو مهمه پوښتنه دا ده چې ښه تبعه څوک دی او څنګه جوړ ېدای سي؟ دې ټولو پوښتنو ته به دلته په لنډه د ځواب ویلو هڅه وکړو:

**تبعه څوک دی؟** Who is citizen?:

د تبعه توري ته په سیاسي علم، قانون او مدني علومو کې یوه ځانګړې اصطلاحي مانا ټاکل سوې ده. د دې علومو له مخې "تبعه" عبارت له هغه چا څخه دی چې د کوم دولت غړی وي او د غړیتوب له ګټو او حقوقو څخه یې برخمن وي. دا اصطلاح د لرغوني یونان څخه راپیل سوې ده چې هلته دا تصور پیدا سو، چې د دولت ځیني اوسېدونکي د دغه غړیتوب د ګټو او حقوقو څخه برخمن سي. هغه افراد چې اتباع نه وه یوازي اوسېدونکي بلل کېده، هغوی هغه امتیازات، حقوق او ګټې نه سوای تر لاسه کولای چې د اتباعو په برخه وې. دغه خلک به غلامان یا باندني ناقلین وو.

په اوسني عصر کې دغه اصطلاح د یوناني عصر څخه څه مختلفه او پراخه ده، نن ورځ د دولت هر اوسېدونکی چې بهرنی نه وي د هغه ځای تبعه دی، د بادار او غلام غیر متمدن او غیر معقول فرق له منځه تللی دی.

**د تابعیت مانا** Meaning of citizenship:

پورتني توضیحات که په نظر کې ونیسو داسې تعریفیږي. تابعیت عبارت د دولت له غړیتوب څخه دی چې په هغه کې هر فرد د هغه ټول حقوقو، امتیازاتو او ګټو څخه برخمن دی چې دولت و خپلو غړو ته ورکړي دي، په دغه حقوقو او امتیازاتو کې مدنی یا مدني او جزایي حقوق لکه ملکیت، جایداد او داسې نور له دې پرته سیاسي حقوق، مثلاً: د رایې ورکولو ډېر زیات مهم حق شامل دی. او ورسره پر اتباعو باندې ځیني مکلفیتونه هم لګېدلي دي چې په هغو کې تر ټولو مهم د مالیې ورکولو او د هیواد د دفاع او ساتنې مکلفیت دی. نو تبعه یوازې دا نه چې د حقوقو او امتیازاتو څخه برخمن دی بلکی مکلفیتونه او مسئولیتونه هم بشپړه وي.

په اصل کې تابعیت دوه ډوله دی یو فاعلي او بل مفعولي تابعیت دی:

فاعلي تابعیت د داسې غړیتوب نوم دی چې په هغه کې تبعه د خپل دولت په سیاسي او دولتي معاملو کې فعاله ونډه اخلي، خپلې دندې او مکلفیتونه څنګه چې ښایي همهغسې بشپړه وي. د خپلو حقوقو څخه په ښه ډول استفاده کوي، د خپل هیواد او ملت په مسایلو او معملو کې دلچسپي اخلي او د هغه د ښه کولو لپاره کوښښونه او کار کوي. د دې برعکس مفعولي تابعیت د داسې حالت نوم دی چې تبعه یوازې خپل شخصي ګټې او هوسایي مدنظر

نيسي، د خپلو حقوقو څخه ګټه اخلي خو خپلي دندي او مکلفيتونه کماحقهٔ نه بشپړه وي بلکي د هغو څخه ځان کاږي او د خپل هيواد او دولت په معاملو کي هيڅ دلچسپي او سرګرمي نه ښکاره کوي . فاعلي تبعه د خپل دولت لپاره وياړ او مفعولي تبعه د اوږو بار دی . د دولت د سلامتيا، سوکالي او پرمختګ لپاره فاعلي تبعه ډېر زيات ارزښت لري . د دغي خبري په نظر کي نيولو سره لاسکي تابعيت داسي تعريف کړی دی : "دا د عامه ګټو لپاره د تبعي په شعوري توګه د فيصله کولو د قوت مرسته ده" . لرغوني يونان يو نوموتی ډرامه ليکونکي يورپيډز Euripeses ويلي دي چي : "په موږ کي چي هر يو د عامه ګټو لپاره څه کولای سي هغه دي راوړاندي سي او د خپل زړه خبره دي وکړي" . په دې ټکو کي يورپيډز د فاعلي تبعي ښه او سم انځور وړاندي کړی دی .

**تبعه او بهرنی**

د هر دولت په نفوسو کي دوه او درې ډوله اوسېدونکي وي . د نفوسو زياتره برخه اتباع وي . دوی ته د دولت غړيتوب او ټول حقوق او دندي ور په برخه وي، خو په نفوسو کي لږ و ډېر داسي خلک هم وي چي د دولت اتباع نه وي بلکي د نورو هيوادونو څخه په موٌقت يا دائمي ډول راغلي وي . و داسي خلکو ته بهرنيان (Aliens) ويل کيږي. دا خلک په اصل کي د کوم بل دولت اوسېدونکي وي چي د سياحت يا تجارت يا د کوم بل کار لپاره د لنډي يا اوږدې مودې لپاره په بل دولت کي استوګن کيږي . نو ځکه خو په بهرنيانو کي دوه ډوله خلک وي . لومړی هغه چي په موقته توګه استوګن کيږي لکه توريستان چي تر يو ځو ورځو استوګني وروسته و بل دولت يا هيواد ته ځي . خو ځيني بهرنيان د اوږدې مودې لپاره په يوه دولت کي استوګن کيږي . موٌقت بهرنيانو ته د ژوند او مال ساتني حقوق ور په برخه دي مګر استوګن بهرنيان د ژوند او مال د ساتني تر څنګ نور زيات حقوق او دندي هم لري . هغه په هيواد کي راکړه ورکړه، تجارت، د جايداد پلور و پير او نور حقوق او دندي هم لري . خو د دغه حقوقو او دندو څرنګوالی او څومره والی په هر دولت کي بېل بېل وي . ځيني دولتونه د بهرنيانو سره ډېر ښه او د خلاص زړه برخورد کوي ځيني دولتونه د منځنيو پېړيو د دولتونو غوندي د بهرنيانو څخه دلتنګه، د شک شبهې په سترګه ګوري او نفرت اميزه برخورد ورسره کوي . په اوسني عصر کي تقريباً په ټوله نړۍ کي ورسره د خلاص نيت، ښه راغلاست او ښه چلند دود مخ پر زياتېدو دی . ځکه چي اوس نړۍ د ټول بشريت نړۍ ګرځېدونکې ده .

چي په هغه کي د انساني خواخوږۍ او ورورولئ احساسات مخ پر زياتېدو دي . ځيني هيوادونه د سياسي مصلحت پر بنسټ د بهرنيانو سره ښه او د خلاص نيت چلند کوي . په هر حال د تابعيت او غير تابعيت له کبله نړيوال قانون او اړيکو ځيني معاملات او مسايل پيدا کړي دي . چي په راتلونکي کي به بحث پر وکړو . خو له هغه جملي څخه د يوې يادونه چي تابعيت د تر لاسه کول، او لغوه کولو مسئله ده وڅېړو :

**د تابعيت د تر لاسه کولو طريقي** Making of Acquiving Citizenship :

د يوه دولت تابعيت پر دوه ډوله تر لاسه کېدای سي :

۱ . زېږېدنه .

۲ . توطن کېدل .

**الف : په زېږېدنه سره :-**

د تابعيت د تر لاسه کولو لومړی او عامه لار زېږېدنه ده . د دې مطلب دا دی که هر څوک په يوه دولت کي پيدا سي نو د هغه تبعه دی . داسي تبعي ته طبعي زېږېدلې تبعه ويل کيږي . خو ځيني وختونه په دې توګه تابعيت تر لاسه کول هم څه مشکلات لري. چي د هغه د حلولو لپاره نړيوال قانون ځو قواعد ترتيب کړي دي .

**لومړی _ دويني د حق قاعده** Rule of Jus Sanguni :

د دې قاعدې سره سم د يوه کوچني د تابعيت پرېکړه د هغه د مور او پلار د تابعيت پر بنسټ کيږي . کوچنی که څه د مور او پلار په هيواد يا کوم بل ځای کي زېږېدلی وی . دغه قاعده په فرانسه او نورو اروپايي هيوادونو کي دود ده . مثلاً که د کوم فرانسوي مور او پلار کوچني په هندوستان کي وزېږي خو هغه د فرانسې تبعه ګڼل کيږي ځکه چي د هغه تابعيت د ويني د خپلوۍ پر اساس باندي ټاکل کيږي .

**دوهم _ د مځکي د حق تابعيت** Rule of Jus-soil

دوهمه قاعده دا ده چي د کوچني تابعيت د هغه د زېږېدو د ځای پر اساس ټاکل کيږي، که څه هم د هغه مور او پلار بهرنيان وي . دغه قاعده په برطانيه او امريکا کي دود ده . خو د نړۍ زياتره هيوادونه دواړه قاعدې لري . په دې سره ځيني وختونه د يوه شخص د تابعيت په ګوته کول يو څه مشکل وي . مثلاً که د فرانسوي مور او پلار يو کوچنی د امريکا په مځکه کي پيدا سي نو فرانسوي ويني د

حق تابعیت د قاعدې له مخې هغه د فرانسې تبعه دی . خو د امریکا د مځکې د حق تابعیت د قاعدې له مخې هغه د امریکا تبعه دی . په داسې حالت کې یو شخص دوه گونې تابعیت درلوونکې سي . که د دواړو هیوادونو تر منځ د دوستی اړیکې وي نو د دوه گونې تابعیت درلودونکې شخص په خپله خوښه له دغه څخه د یوه هیواد تابعیت غوره کوي . لیکن که د دواړو هیوادونو تر منځ دښمني او د ساړه جنگ حالت وي نو بیا هغه شخص په هر هیواد کې چې اوسي د هغه تابعیت په منلو باندې مجبوره دی .

**ب ـ توطن کېدلو سره** By Naturalization

توطن عبارت د خپل هیواد تابعیت پرېښوول او د کوم بل هیواد تابعیت غوره کول دي. دغسې تبعې ته چې نوی هیواد یې غوره کړی وي Naturalised Citizen متوطن تبعه ویل کیږي. نن ورځ هر دولت د تابعیت غوره کولو لپاره قوانین او قاعدې مقرره کړې دي . که څه هم دا قوانین او قاعدې یو ډول نه دي خو بیا هم په هر دولت کې څه قاعدې ضرور وي . چې په هغه کې د تابعیت غوره کولو یا توطن د یوه ټاکلې فارم ډکول، د خپل نوي هیواد سره د وفادارۍ لوړه او نور یکښي د یادولو وړ دي . په ځینو هیوادونو کې د توطن لپاره ځینې شرایط هم سته ، مثلاً د امریکا لپاره کاندید سوی متوطن تبعه د سپین نژاد، د جایداد خاوند او غیر کمونست کېدل لازمي دي . د رنگه نژاد د خلکو لپاره سهمیه ټاکل سوې ده . په استرالیا کې د رنگه نژاد خلک توطن نه سي تر لاسه کولای. په جنوبي افریکا کې هم دا حال و. ځکه چې په دې هیوادونو کې نژادي تبعیض په ډېر شدت سره موجود و. یو ځل د متوطن تبعې کېدو وروسته په هر هیواد کې ور سره د اصلي ساریانو غوندې چلند کیږي او برابر حقوق او دندې ور په برخه وي . په دې کې هم په مختلفو هیوادونو کې مختلف قوانین او طریقې سته. مثلاً په امریکا کې متوطن تبعې ته د امریکا رئیس جمهور کیدلو حق نه ور کول کیږي .

توطن د تر لاسه کولو لپاره ځینې اسانتیاوې هم سته . مثلاً که کومه ښځه د یوه بهرني سره واده وکړي نو هغه د خپل مېړه د هیواد متوطن تبعه گڼل کیږي که څه هم هغې تابعیت غوره کړی نه وي . که کوم بهرنی تر ډېرو اوږدو مودو پوري په یوه هیواد کې استوگن وي نو هغه په خپله د هغه هیواد تبعه گڼل کیږي که یو بهرنی د کوم دولت په وسله وال پوځ کې جذب سي نو هغه د هغه هیواد تبعه بلل کیږي .

**د تابعیت پرېښول** Loss of Citizenship

تابعیت په لوړو یادو سوو طریقو سره پرېښوول کېدای هم سي . که کوم تبعه د بل هیواد تابعیت غوره کړي نو د خپل مځکني هیواد د تابعیت څخه محرومه کیږي . همداسې هغه ښځه چې د کوم بهرني سره واده وکړي نو د خپل هیواد تابعیت د لاسه ور کوي . د جگړې په وخت کې که کوم څوک د دښمن په پوځ کې شامل سي نو د خپل هیواد تابعیت به د لاسه ور کړي .

# ښه تابعیت

د دې څېرکې په پیل کې مو دا خبره وکړه چې د دولت د پرمختگ او سوکالۍ لپاره یوازې مفعولې تابعیت یا غړیتوب مهم نه دی بلکې د یوه کارنده، باخبره او فاعلې تابعیت ډېر ضروري دی . و داسې تابعیت ته موږ ښه تابعیت وایو . هغه خلک چې د خپلې ټولنې هدف ور ته معلوم وي د خپل دولت په معاملو کې فعاله وي، په مدني حس او پوهې سره سنبال وي ښه تبعه بلل کیږي . هغه د خپلو حقوقو څخه حتماً خوند اخلي خو د خپلو مکلفیتونو او مسئولیتونو د بشپړه ولو لپاره تیار وي، هغه د قانون احترام او د نورو حقوقو ته په درنه سترگه گوري او د خپل هیواد ښېگڼې لپاره هڅه او هاند کوي .

**د ښه تبعې صفتونه**

ښه تبعه زیات صفتونه لري چې په هغو کې د څو مهمو یادونه دلته کوو . لارډ برایس د دغو صفتونو په اړه ویلي دي چې د ښه تبعه کریکتر او ذهن درې ښېگڼې لري چې دی نېک گرځوي .

هغه عبارت له پوهې، وجدان او مسئولیت پېژندنې څخه دي .

۱ . **پوهه** د ښه تبعې لومړنی صفت د خپل هیواد په معاملاتو او مسایلو کې د پوهې او د هغو درک کول دي . د عقل او تصمیم څخه کار اخلي او د هیوادني معاملاتو او مسایلو سره دلچسپي لري .

خو د دې لپاره دا ضروري ده چې لږ و ډېر تعلیم یې تر لاسه کړی وي . ځکه چې تعلیم یافته تبعه د هیواد په پېچلو او غور طلبه مسایلو او معاملاتو په ښه درک او دهغو په اړه دعقل او پوهې فیصله کولای سي . داسې تبعه ډیموکراسي په ښه ډول درک کولای او ډیموکراتیک نظام په ښه ډول

چلولای سي چي په هغه کي دي په يوه وخت کي هم حاکم او هم محکوم وي .

۲. **سالم وجدان** د ښه تبعي دوهم صفت دا دی چي هغه خپل هيوادني او ملي معاملو ته پر خپل شخصي معاملو او ملي ګټو ته پر خپلو شخصي ګټو باندي ترجيح ورکوي، په ده کي د خودغرضي، خودپرستي او خودبيني عادتونه نه وي. بلکي په ده کي قرباني ته چمتووالی، د هيواد سره مينه، مدني حس او د تحمل احساسات او عادات وي .

په خپل سياسي ژوند کي پر خپل ځان باندي تسلط لري او خپلي محدوده ګټي د ټولنيزو او ملي ګټو تابع ساتي، هغه خپله رايه د ګوند، قوم، نژاد او يا مذهبي ډلي يا فرقي په خاطر نه بلکي د ملت او هيواد په خاطر استعمال کړي. او د خپل ذاتي يا محدوده ګټو په خاطر د هيواد ګټي قربان نه کړي. هغه په خپله ټولنه او سياسي ژوند کي د داليمبر په وينا عمل کوي چي "زه تر خپل ځان و خپلي کورنۍ ته، تر خپلي کورني و خپل هيواد ته او تر خپل هيواد و ټول انسانيت ته ترجيح ورکوم".

۳. **مسئوليت پېژندنه** ښه تبعه د خپل ځان او هيواد په اړه چي څه مسئوليتونه او دندي لري هغه په ديانتداري او باوجدانه توګه سر ته رسوي. په دې لړ کي هغه د خپل هيواد د دفاع لپاره چمتو وي، ماليه ورکوي او خپله رايه په سمه توګه کاروي.

**د ښه تابعيت په وړاندي خنډونه** Hindrances to good Citizenship

په اوسني ديموکراتيک عصر کي ښه تابعيت ته ډېره اړتيا سته. په تېرو وختونو کي چي د پاچهانو حکومت به وو، نو د دولت سوکالۍ او پرمختګ مسئله به تر پاچا او د هغه پلويانو او درباريانو پوري محدوده وه، عامي رعايا نه په دې کار درلودی او نه ګډون پکښي ورکول کېده. خو اوسني ديموکراسي يوازي دا نه چي د اتباعو په وسيلي سره ده بلکي د اتباعو د رايي او فيصلي سره سم پر مخ بېول کيږي. نو ځکه خو د ښه اتباعو ارزښت زيات سو. که چېري دغه اتباع بې خبره، ټمبل، لاپرواه وي د ديموکراسي وجود هم په خطر کي لوېږي. بلکي ديموکراتيک نظام به ټول وپاشل سي. لهذا دا مسئله ډېره مهمه ده چي کومي شېګني او نيمګړتياوي چي د ښه تبعي جوړېدو په مخ کي خنډ وي. لاردبرائس د انګلستان تجربې په مدنظر نيولو سره ټمبلي، د دندو او وجايبو څخه غفلت، ډله بندي او خودغرضي د ښه تبعي جوړېدو په مخ کي خنډ بولي. خو په وروسته پاته هيوادونو کي نو څه نوري نيمګړتياوي لکه لوږه، افلاس، جهالت، د تعليم کمی، رسم و رواجونه او نور ورزياتولای سو .

۱. **ټمبلي** ټمبلي عبارت د داسي ذهني او جسماني حالت څخه ده چي تبعه د خپلو دندو او مسئوليتونو په سر ته رسولو کي د غفلت او لاپرواهي څخه کار اخلي، هغه له دندو څخه مخ اړوي او د دندو او وجايبو سر ته رسولو څخه ځان کاږي، هغه د هيواد او ټولني ګټو، پرمختګ او سوکالي لپاره هيڅ نه کوي . په داسي صورت کي د حکومت واګي د څو مفادپرستانو و لاسونو ته ولوېږي . چي د خپل ذاتي غرض او ګټو لپاره دولت خپله آله ګرځوي، او په هيواد کي چور او تالان، اړودوړ او خودغرضي په ښه زور روانه وي. په دې توګه د دولت زياتره نفوس مشغولي تبعي وګرځي او په غفلت کي ژوند تېره وي . او څو نفره د دولت د ټولو وسايلو څخه ګټه اخلي او زورواکي په وجود راولوړي .

۲. **خودغرضي** د ښه تابعيت او دولت په لار کي دوهمه نيمګړتيا او خنډ خودغرضي ده، که په اتباعو کي خودغرضي زياته سي، نو هغه د هيواد او ملت تر ګټو د خپلو ذاتي او کورنيو ګټو لپاره کار کوي . په داسي صورت کي په هيواد کي هر يو د خپلو جيبونو ډکولو. په خپل کور کي په روا او ناروا لارو ثروت زياتولو او خپلو دوستانو، خپلوانو د ګټو لپاره کار کوي، همداسي خپل پالنه، رشوت، واسطه او نورو بازار ښه تودوي. په هيواد کي د وطن سره مينه، مدني حس او عامه ګټو احساس او جذبات ختم سي .

۳. **ډله بندي** په ديموکراسي کي لازما سياسي ګوندونه موجود وي، که ګوندي نظام په ښه ډول عملي نه کړل سي د ديموکراسي لپاره د نعمت پر ځای لعنت ګرځي، دا هغه وخت کيږي کله چي تبعه خپل ګوند او ډله د هيواد تر ګټو لوړ وګڼي او په ډله بندي باندي اخته سي .

**پاته په (۵۸) مخ کي**

# هنر او ادب

عبدالمجید بابی

## د ستورو کور

چې ښه او بد دا ستا د ژوند وګورم
د ډیورند کرښه یا میوند وګورم
دا چې مې مینه ستا د ستر ګو کړې
د ترمو اوښکو به یې خوند وګورم
دا چې پښتو سر نه پوړنی پر بووت
ورته به بیا یو بل مومند وګورم
دا چې یوه ژمنه په بله ومرې
زه هغه خپل کړی سوګند وګورم
پرون شفق په سرو لاسونو ګرم وٌ
نن به د لمر ورپکښې شخوند وګورم
د نور یوې لپې ته شپې سبا سوې
ګوندې سپېدې غبرګ کې مړوند وګورم
تږې ساغر ویل کندوالې به پې کړم
څو په محراب کې مست اخوند وګورم
"**بابیه**" دا وریځې به ماتې سې ژر
بیا به د ستورو کور څرګند وګورم



احمد صمیم

## شپږم ستوري

د امید سپینه سپوږمۍ چي پر موږ راسي
د خسوف په تور پوړني کي پنهان ځي
موږ بدبخته پر تاریکو خرابو ځو
څوړلسم بدر ته نور نور لایقان ځي
پر ګلشن چي مو نرګس کړي سترګي روڼي
رژېدو ته یې چابک چابک خزان ځي
پر فرهنګ د یو ملت به خاوري اوړي
چي ناطقه کتابتون د دې زمان ځي
د موزیم مجسمې ټوله سکوت دي
مورخ ابن خلدون نن د افغان ځي
حوصله یې نور بې قدره قوم ته نه وه
چي په مرګ هم پوهنتون ته په باران ځي
نن مرشد ځي او رشاد ځي او ارشاد ځي
شاعران څيري ګرېوان ځي په ګریان ځي
چي "صمیم" ورځي د وصل دروازې ته
بند بېدو ته یې دستي دروازه وان ځي



### څلوریځه

تمه بلا ده اصیل بنده کا
ښه ښه سړي وي دا یې ګنده کا
ما ډېر لیدلي دي چي تمه نه لري
په بادشاهانو پوري خنده کا

خوشحال خان ختک



عبدالباري جهاني

## غزل

وچي سولې اوښکي ګر ېوانونو ته به څه وایو؟
درد راسره خپل سو پر هارونو ته به څه وایو؟
شپې مو په ساحل کي د څپوله وهمه وتښتي
وخت که لېونی سو توپانونو ته به څه وایو؟
موږ خو نه د دار نه د سنګسار میدان ته ووتو
اوس د رقیبانو پېغورونو ته به څه وایو؟
زموږ له شونډو مه غواړه زاهده د خلوت کیسه
مستي مو توبې کړې تقدیرونو ته به څه وایو؟
ما مي په سکروټو کي خیالونه ورلېږلي وه
والوتل خوبونه تعبیرونو ته به څه وایو؟
دلته چي راتلو شپې مو د اور سره منلي وې
روغ دي وزرونه پانوسونو ته به څه وایو؟
سل وعدې مو هسې د اوبو پر سر کرلي دي
ووایه روبیاره پیغامونو ته به څه وایو؟
ولي پر دې مېښي ته لېږو د **جهاني** غزل؟
کور ته د صنم څو تصویرونو ته به څه وایو؟



عبدالقدیم پتیال

## غزل

نن د ګناه په نوم پر سر اړوو جام ګنهګار
و بدمستانو ته مو دغه دی پیغام ګنهګار
تر شوخ زندانه به حلال کړو په سوو امامان
ګوندي ایله کړو د انکار یو شوخ امام ګنهګار
مزل اسان دی تر "اګرې" پوري هیڅ زور نه غواړي
خو د مستۍ په نوم ډېر زور غواړي یو ګام ګنګهار
دا توره نه ده چي پر ورور دي ستر ګي غتې کړلې
له انتقامه به ته اخلې انتقام ګنهګار
هدف چي نه لري ګمراه دی سر یې غوخ سي باید
نو راځئ ولړو په ګډه یو مرام ګنهګار
زړه مي بیا غواړي چي سم قتل په قاتل نظر نن
یو څه خو پور ته باڼو ګان کړه لږ په پام ګنهګار
چي مو لار ورکه کړه او شپه مو له غریب سره سوه
باداره بیا درځه غواړو ها ماښام ګنهګار
که مو آواز د سر کښې کړ تر قیامته پور ته
نو ګوندي خوښ کړو بیا په [illegible] کي خیام ګنهګار

✿ عبدالقدیم پتیال

د کندهار یو نوموړکی شاعر

# نبو

## د ژوند زمانه (۱۱۹۰ هـ ق شاوخوا)

نبو د کندهار له ولسي شاعرانو څخه ګڼل کیږي . یا په بله اصطلاح د بې دیوانه شاعرانو له منځني کتار څخه یې بللای شو . د ده اصلي نوم په شایي یا (محمد نبي) یا (عبدالنبي) وي . خو موږ ته د ده کلام د (نبو) په نامه رارسیدلی دی .

موږ په دغه نامه په پښتو کې دوه نور شاعران هم لرو (یا شایي زه "پتیال" په په دغه نامه دوه شاعران پېژنم) خو دغه (نبو) چې زه یې په اړه مضمون کاږم ، په پښتو کې دریم شاعر دی . چې ما یې تر اوسه په پښتو تذکرو کې یادونه نه ده لیدلې او له چا څخه چې مې د دغه شاعر په باب پوښتنې کړې دي . هم یې نه دی پېژندلی . نو ځکه زه ورته نوموړکی شاعر وایم .

ما وړاندې هم یادونه وکړه چې د (نبو) په نامه زه دوه نور شاعران هم پېژنم چې یو یې عبدالنبي نومېږي او د (نبو) په نامه یې شهرت پیدا کړی و . دی د عبدالشکور زوی او د فتح محمد لمسی و . په خټه هوتک او د کندهار ولایت د (مېزاني) د سیمې په (باکوان) کښې تقریبا د ۱۲۸۶ هق په شاوخوا کښې زېږېدلی او هلته لوی سوی دی . وفات یې په ۱۳۴۲ هق کال په (تیري) کې واقع سوی دی . ده د ځوانی په ابتدا کې سند ، پېښور او کابل ته سفرونه کړي دي او شاعري یې له ۱۳۱۱ هق کال څخه را پیل کیږي . د ده اشعار چې اغلباً ملي اوزان لري د کلات ، تیري ، دهراوت او روزګان په سیمو کې ډېر محبوبیت او رواج لري . د ده لیک او لوست نه و زده او غزلې یې اکثراً په حافظه کې خوندي ساتلي وې . وایي د ده د غزلو شمېر دروه ، څلورو زرو ته رسیږي او بدیهه ګویي یې په خپل وخت کې مشهوره وه (پښتانه شعراء ، دریم ټوک ـ ۸۲۸ مخ . ۱۳۴۲ لمریز کال د پښتو ټولنې د تاریخ او ادبیاتو د څانګې لخوا) .

بل شاعر چې په پښتو کې یې د (نبو) په نامه شهرت لاره ، د لغمان د الیشنګو و . چې غالباً په ۱۳۱۲ هق کې لا ژوندی و . دی د طلامحمد زوی او د نظرعلي لمسی و . ده هم لیک او لوست نه سوای کولای او شعرونه یې په حافظه کې ساتل . اکثره وخت به یې د ځوانانو په مجلسونو کې خپل شعرونه په وزم سره زمزمه کول . ډېره ټوکي طبع یې هم لرله او تل یې د ځوانانو باندارونه ګرم ساتل (د علامه رشاد بابا شفاهي معلومات چې ما (پتیال) ته یې راکړي دي) .

ما چې تذکرې سره وپلټلې نو د لغمان د دغه شاعر یادونه مې نه پکښې ولیدل تر کومه ځایه چې ما مطالعه کړې ده ، ویلای سم چې د لغمان دغه شاعر موږ په پښتو تذکرو کې نه لرو او نه یې بل چا یادونه کړې ده .

دغه شاعر اوس چې اوس یې زه د کندهار نوموړکی شاعر بولم ، هم په تذکرو کې نه دی معرفي سوی ، نو بده یې نه بولم چې لږ تر لږه یې له نامه او شعر سره آشنا سو .

(نبو) د لوی احمدشاه بابا معاصر و او موږ یې له شعر څخه معلومولای سو چې د لوی بابا تر مړیني وروسته یې څو کاله نور ژوند کړی دی . څرنګه چې لوی احمدشاه بابا د (۱۱۸۳ هق د لومړی خور پر دویمه) وفات سوی دی او نو د هغه تر مرګ وروسته هم ژوندی و . نو بده به نه وي چې د ده له نامه سره ولیکو چې (۱۱۹۰ هق شاوخوا د ژوند زمانه) .

د ده له شعر څخه موږ ته دا اوڅاريږي چي دی د کندهار د ارغسان د ولسوالۍ و ، هلته زوکړی او هلته يې ژوند کړی و او په خپل شعر کي يې د لوی احمدشاه بابا مړيني ته هم اشاره کړې ده ، او پر همدغه بنسټ موږ ويلای سو چي دی د لوی بابا تر مرګ وروسته هم ژوندی و .

اوس يې زه د نمونې په توګه يوه غزل درنو لوستونکو ته وړاندي کوم

بېهوده مي ژوندون تېر پر ارغسان سو (۱) سو
تک شين کوړم راته په شانې د زندان سو
د زلفينو په ځنځير يمه تړلی
را چاپېر مي تر بدن اور د جانان سو
څوله ـ څوله (۲) آخوا دې خوا همېش کېږم
راته تنګ اوهم کوشني (۳) دا درست جهان سو
د احمد په مرګ نور هم زه پسې خوړين (۴) سوم
په ژړا او واويلا ټوله افغان سو
کندهار ښار (۵) بې بابا سو او بې پلاره
مرور چي تر ابده احمد خان سو (۶)
پر ګوندرې (۷) باندي يې خاوري واړولې
چي بې ننګه بې غير ته ولي جان (۸) سو
بې ننګي (نبو) ونه غواړې په عمر
که نه دين او په دنيا کي دی تاوان سو

د نبو ډېر شعرونه زموږ سره نسته چي له هغو څخه د اخر ګنده کړو چي دی د کومې درجې شاعر و ، په کوم کتار کي درېدئ او د چا پيروي يې کوله؟ نو ځکه به مو اوس پر پکړه کول لازمي نه وي ، يا شايي مبالغه وسي او يا حق تر پښولاندي سي .

**لمنليکونه:**

۱ . ارغسان : د کندهار له مشهورو او لويو ولسواليو څخه ګڼل کيږي .

۲ . څوله ـ څوله . دا يوه اصطلاح غوندي ده ، څوک چي ډېر کهاله او لټ وي . نو ورته وايي چي : ځه څوله ـ څوله کېږې . محمد نومي شاعر درې نيم سوه کاله وړاندي ويلي چي :

چي لټې وي زور پر کړی په ځوانی لا
څوله ـ څوله را روان وي دا بدبخته

۳ . کوشني : په کندهار کي ډېر خلک د (کوچني) توری په (کوشني) تلفظوي .

۴ . خوړين : کله چي څوک نتلی ، ځپلی او درد ېدلی وي يا سي ، نو وايي له غمه خوړين سوم ، له درده خوړين سوم او يا له ځينو نورو منفي (Negative) کلمو څخه خلک وايي چي خوړين سوم .

۵ . کندهار ښار : په ۱۱۷۴ ه ق کال کي لوی احمدشاه بابا د احمدشاهي ښار د تاداو ډېره کېښېنوده او پر همدغه کال د پاني پت لويه او ستره غزا هم واقع سوې ده .

۶ . احمدخان : مطلب يې لوی احمدشاه بابا دی .

۷ . ګوندری : په دغه لغت پسي ما ډېره څېړنه وکړه ، خو مانا مي يې ونه موندل . ځيني پښتانه د وچو اوړو ستر خوان ته چي د ډوډۍ پخولو په وخت کي هواريږي او ځوالې پر اېښوول کيږي . هم (ګوندری) وايي ، شايي مطلب به يې همدغه ګوندری وي .

۸ . ولي جان : شايي دا سړی به د دوی د کلي يو اوسېدونکی و او خدای خبر چي څه بې ننګي به يې کړې وي .



**د حضرت محمد ﷺ غوره ويناوي**

✓ حقيقي مسلمان هغه څوک دی چي نور مسلمانان د هغه د ژبي او لاس له شره څخه په امن وي.

✓ څوک چي د امانت مراعت نه کوي، کامل مؤمن نه دی. همدغه راز څوک چي پر خپله وعده وفا نه کوي، هم د کامل دين خاوند نه دی.

✓ پاکي د ايمان يوه برخه ده.

✓ کامل مؤمن هغه څوک دی چي د ښه خوی خاوند وي.

✓ په هيڅ يوه مؤمن کي دغه دوه خاصيتونه، نه يو ځای کيږي: بخل او ناوړه خوی.

✓ پر هر مسلمان د علم زده کړه فرض ده.

✓ کله چي يو سړی بل ته پور ورکړي نو د پوروړي سوغات دي نه قبلوي.

میراجان همکار

## د مرغومي

# شپېرمه؟

## پر افغانستان باندي د سره پوځ يرغل، لاملونه او پايلي

**يادونه** - پر افغانستان باندي د سره پوځ د يرغل د پنځه ويشتم کال په مناسبت !
بايد دا وه چي دا مقاله د (ليندی او مرغومي) مياشتو په ګڼه کي خپره سوې واى، دا چي د کندهار مجلې هغه ګڼه علامه رشاد بابا ته ځانګړې سوې وه ځکه نو د (سلواغي او کب) په ګڼه کي خپره سوه . اداره

افغانستان د پنځه زره کلن تاريخ په درلودلو، د لويو مدنيتونو د وصل کرښه او د خپل جيوپوليتيکس (جغرافيايي سوق الجيشي او استراتيژيک) موقعيت پر اساس چي د آسيا په زړه کښي قرار لري، همېشه د يوې استراتيژيک عمده هدف په سر کښي دلويو استعماري طاقتونو د توجه وړ ګرځېدلی دی .

د شوروي اتحاد د جوړېدو تر مخه د روسي تزار په مرامنامو کښي بحر هند ته د خپل ځان د رسولو تمه درلوده، چي دغه شوم نيتونه د امير عبدالرحمن خان په يادداښتونو او همدارنګه د نورو افغاني پوهانو په آثارو کښي هم ذکر سوي دي .

له همدې وجي د افغانستان موقعيت په منطقوي او بين المللي سطحه د يوې حساسي ساحې په حيث پېژندل کيږي .

کله چي دوهم نړيوال جنګ پای ته ورسېده، او نړۍ پر دوو سترو اړخونو بلاکونو يعني سيوسياليزم او سرمايه داري سره ووېشل سوه، افغانستان د شوروي د يو ګاونډي په صفت لا د اهميت او پاملرني وړ وګرځېدی، غرب د يوې نوي استراتيژۍ د طرحه کولو پر اساس غوښتل چي د روسانو پرمختګ د آمو د سينده څخه دوري نسي، مګر شورويانو افغانستان خپل جنوبي سنګر باله او ډېر اهميت يې ورکاوه .

په افغانستان کښي شاهي نظام دغه ټکي ته متوجه و، چي د غرب او شرق تر منځ د حساسيت بلانس يې ساته، خو کله چي د دموکراسۍ په لسيزه کي جريانونه رامنځته سوه، شوروي د خپلي سوسياليستي ايديولوژۍ اندېوالانو پسي ځراغ پورته کړ او وتوانېدل چي په افغانستان کښي د پښو ځای ومومي .

د سردار محمد داود خان د (۱۳۵۲ش) کال کودتا د تعادل بيلانس مات او د شوروي کمونسټ پلو قوتونه د دې جوګه سوه چي د داودخان په حکومت کي ځان ځای کړي او دغه حالت وروسته بيا د شورويانو د لاس غزوني لامل سو، او د شوروي د مداخلې چانس يې زيات کړ .

کله چي داود غرب ته سفر وکی او د کومکونو د جلبولو نيت يې درلودی وروسته بيا شوروي ته ولاړی، ماسکو نارضايتي ښکاره کړه او په ډېر تکبر سره يې داود ته ګوت ځنډنه وکړه چي د غرب د نژدېوالي څخه ځان وساتي او يوازي د شوروي په هدايت حرکت وکړي . آن

چي داود ته د افغانستان په شمالي سرحداتو او حتی د افغاني خاوري دننه د عسکري محدودو تمريناتو وړانديز وسو، خو دا خبري پر داود باندي ښه ونه لګېدې او د شورويانو سره يې موافقه ونکړه.

روسانو هم د داود خان د دې عکس العمل په بدل د هغه د نابودی د مداخلت د نورو ذرايعو په لټه کي سوه. کله چي داودخان کابل ته راغی په ځان پوه سو چي په حکومت کښي د چپي عناصرو سته والي د ده او د ده د رژيم لپاره ستر خطر ګڼل کيږي. په دې اساس يې په خپل حکومت کي د تصفيې تدبير ته مخه کړه، خو دا کار لا شوروی وخښماوه او د چپي انديوالانو پر يووالي باندي يې منځګړتيا وکړه تر خو په ۱۳۵۶ ش کال کښي د خلقيانو او پرچميانو تر منځ وحدت تامين سو، او دا پخپله داود ته يو ستر ګواښ سو.

له بله پلوه په پاکستان کښي د داود د حکومت په مقابل کښي له سره مخالفت موجود و، ځکه پاکستان د پښتنو او پښتونستان پر مسايلو باندي د داود د شخصيت څخه وېره درلوده. له همدې سببه په پاکستان کښي د داود د رژيم مخالفين او اسلام پالو ګوندو ته کوم چي د داود سره په مخالفت کښي وو ځای ورکړ. چي دغه موضوع د داود د حکومت د کمزورتيا بل لامل سو.

په دې وخت کي داود پوه سو چي وضع ورځ په ورځ مخ پر خرابېدو ده، نو ځکه يې پر خپلو مخالفينو باندي فشار زيات کړ، مګر د ده په حکومت کښي يو مثبت ظرفيت چي د ده د رژيم د دې بلاوو څخه وساتلای سي موجود نه و، نو همدغه علت و چي خلقيانو وکولای سوای چي د ثور کودتا کاميابه کړي او د داود نظام له منځه يوسي.

د ثور کودتا شورويانو ته ډېر ښه زېری و، خو وروسته د دوی د تشويش باعث سو، کله چي د افغانستان خلک د ثور د کودتا په مقابل کښي ودرېدل او خلقي دولت د اولس پشتيباني له لاسه ورکړه، له بلي خوا غرب چي داسي موقع ته منتظر و، د ثور د کودتا د مخالفينو ملاتړ وکړ، په دې وخت کښي افغانستان د سړې جګړې د مقابلې ميدان د ټاکل کېدو ښه سوه.

کمونستي حکومت ورځ په ورځ کمزوری کېدی او د خلکو د مقاومت توپان مخ پر ډېرېدو و، د خلقيانو او پرچميانو تر منځ اختلافات، په وروسته کي بيا د خلقيانو تر منځ خپل منځي نا باوری چي د تره کي د وژل کېدو باعث سوې، لا د دې رژيم د سقوط د نژدې کېدو سبب سوې، آن چي حفيظ الله امين غوښتل چي د پاکستان سره جوړه او د مجاهدينو سره روغه وکړي. له بلي خوا په بين المللي سطحه باندي هم مختلف تغيرات رامنځته سوه. په منځني ختيځ کښي د غرب د ناسوناليست دولتونو په سياست کښي تغيرات راغلل، مصر د شوروي څخه خپله لاره بېله کړه او سادات غرب ته نژدې سو، شام (سوريې) د شوروي سره پخواني علاقه مندي کمه کړه، د عراق ديکتاتور صدام کله د شورويانو خبرو ته غوږ نياوه او کله به يې د چا پروا هم نه کوله، په پاکستان کښي امريکا حضور درلود او د پاکستان سره د امريکا ښه اړيکي وې. خو په ايران کښي اسلامي انقلاب راغی، شوروي په دې اړوند خوشحاله و خو د کمونستي ايديالوژۍ په خاطر ايراني نوي دولت ته يې د شک په سترګه کتل.

په داسي اوضاع او حالت کښي د شورويانو څخه لاره ورکه سوه. په دې موقع که د کمونستانو پرچمي برخي د ببرک کارمل په مشري په ماسکو کښي ناست او ماسکو د دوی نظرياتو ته پاملرنه کوله. شورويانو د خپل ناقص تحليل او تجزيې سره دغه نقطې ته ورلنډ سوه چي که ګويا موږ افغانستان ته ورنه سو، امريکائيان راځي.

فلهذا يې په ټېو ستر ګو دغه لوی قمار ته لاس اوږد کړ، او د جدي په شپږمه يې پر افغانستان باندي يرغل وکړ. چي په نتيجه کي د افغانانو د سخت مقاومت سره مخامخ سوه او افغانانو وکولای سوای چي د خپل ملي غرور او اسلامي جذباتو پر بنا او د غربي ممالکو د مالي او تخنيکي مرستي پر اساس په پای کښي سور پوځ مات، شوروي ړنګ او د برلين د دېوال ونړوي، خو افغانانو ته دا جګړه ډېره ګرانه تمامه سوه، ( ۱،۵ ) مليون افغانان شهيدان، (۱) مليون معلول او (۱۰) مليونه مهاجر سوه.

مګر حقيقي ګټه چا پورته کړه؟

غرب خپل اصلي مرام ته ورسېد. کمونيزم او شوروي له منځه ولاړ. د دوی ګټي او رژيمونه د کمونيزم له خطرونو څخه په امان سوه او په دې لويه لوبه کښي يې د افغانانو د قرباني په بدل کښي بری تر لاسه کړ.

خو خوار افغانان په ډېر بد حالت ناخلفو خلکو ته وسپارل سول او دا يوه لو تاريخي اشتباه وه چي وروسته په ډېر قيمت تمامه سوه.

په تاسف سره بايد وويل سي چي د ځينو معينو تنظيمونو او ډلو نمايندګانو چي کله افغان ولس بې وسه وليدی، د دوی دغه لويې قرباني او ستري لاسته راوړني يې

په ځان پوري وتړلي، خو دا چي کوږ بار تر مزله نه رسيږي په ښاد نه سوه، او په خپل منځي جګړو کښي د خوار افغانستان پاته هستي يې په نيستي بدله کړه او د افغان ملت سره د دې ستري جفا په کولو يې خپل ديني او دنيوي مسئوليت او عقوبت د روند کړ .

د ګاونډيانو د مداخلې او د هيواد د بربادۍ دروازې پرانستل سوې چي په نتيجه کښي افغانستان د تروريزم او مخدره موادو په مرکز بدل سو .

او اوس :

پوهانو ويلي دي چي :

"مخ ته ځې، شاته ګوره ! "

موږ ته اوس هم ښه موقع برابره ده، تر خو پر سد سو او پر خپل ځان باندي ورحمېږو، د تيرو څخه د عبرت او د عزت پند او سبق واخلو، د وحدت او ورورۍ فضا تامين کړو، يو سم دولت جوړ کړو، ملي باکفايته پارلمان رامنځته کړو، بين المللي حمايت وساتو، پر ځان باندي تکيه وکړو او پر خپلو پښو ودرېږو .

کنه نو !

بيا به د ثور اوومه، اتمه، د جدي شپږمه او تر دې به لا هم بدي ورځي تکرار او بيا به تکرار سي .



## تابعيت . . .

**۴ . افلاس او لوږه** : د ښه تابعيت او مدني احساس په لار کي لوی خنډ افلاس او غربت دی . لامل يې دا دی چي يو مفلس او وږی سړی ټوله ورځ د ډوډۍ په لټون وي چي له دې کبله هغه د سياسي او ملي مسايلو و خواته چنداني توجه کولای نه سي، بلکه د هغو په اړه يې تغافل اختيار کړی وي . په داسي حالاتو کي د هيواد او حکومت واګي د ځينو استراحت طلبه و لاسونو ته لوېږي . د دې پر ته د غربت او افلاس له کبله په هيواد کي قتل و غارت، چور و تالان، غلا، مکر و فرېب او نور جرمونه زيات وي چي د ښه تابعيت ټول صفتونه د نفوسو د زياتره برخي له مغزو څخه پاکوي . کله چي په هيواد کي په جرمونو ککړ و خلکو غلبه وی نو د ښه تابعيت اوصاف لکه : ځان پېژندنه، د وطن سره مينه، ملت پالنه، مسئوليت پېژندنه او نورو لپاره به چيري ځای پاته سي؟ غربت په خپله خلک د ښه اوصافو پر ځای و جرائمو او بديو و خواته مايلوي .

**۵ . د تعليم کمی** : د افلاس پر ته، د تعليم کمی او جهالت هم د ښه تابعيت د پيدا کېدو مخنيوی کوي . د علم د کمي له کبله د خپل ښه او بد تميز نه سي کولای . او مخرب الاخلاق عاداتو، خويونو باندي اخته سي .

**۶ . ناوړه رسم و رواجونه** : ناوړه رسم و رواجونه، خويونه او اداري هم د ښه تابعيت په مخ که خنډ وي . لکه قام ګلوی، قبايلي تفرقې، ډله بندۍ داسي رسوم او خويونه دي چي د ښه تابعيت د پيدا کېدو خنډ دي .

**د دې علاج :**

د ښه تابعيت په لار کي چي کوم عادتونه، خصلتونه، خرابي او خويونه موجود دي د دې ټولو علاج او له منځه وړنه د تعليم او د هغه عامول، د افلاس او غربت له منځه وړنه، د هيواد اقتصادي پرمختګ، سياسي او قانوني اصلاحاتو په راوستلو سره کيږي . د ټولني اصلاح د دې علاج پيل دی . د مثال په ډول که کورنۍ د حق، انصاف او مساواتو پر اصولو باندي جوړه کړل سي او والدين د ښه عادتونو او کريکتر خاوندان وي نو اولاد به يې هم ښه انسان او ښه تبعه وګرځي .

نور بيا . . .



## سپين ږيري شېر ببر يا . . .

**د خوشحال خان تأليفات :**

۱ . د هدايې ترجمه
۲ . فضل نامه
۳ . د مثنوي ديوې برخي ترجمه
۴ . طب نامه
۵ . قصيدې
۶ . غزليات
۷ . رباعيات
۸ . قطعات او متفرقات
۹ . بازنامه
۱۰ . سواتنامه
۱۱ . دستارنامه
۱۲ . پارسي اشعار _ په پارسي شعرو کي خپل تخلص "کوهي "ليکي .

نوټ : په دې مقاله کي د سيد رسول رسا ارمغان خوشحال څخه استفاده سوې ده .

احمد صمیم

# سپین ږیری شېر ببر

## یا

# د کوهستان سعدي

ختک دوې پښې دي (بولاق) او (تري). ملک اکوړی (تري) ختک دی چې د کوهاټ د "تیرې" څخه راغلی و، چې "مان سنگ" د اکبر سره معرفي کړ.

جلال الدین اکبر اکوړی د شاهي سړک د حفاظت له پاره توظیف کړ. شاهي سړک د اټک او نوښار تر منځ واقع و، اکوړي هلته یو کلی آباد کړ چې "اکوړه" یې بولي.

ختک به د مغولو په گټه د لارې پر سر د یوسفزو او مندړو سره جنگېدل. ځکه یوسفزو او مندړو د مغولو قافلې وهلې، نو ختکو یې مخه نیول نو دوی سره دښمنان سوه او د لارې محصول به یوازې ختکو ته پاتېدی.

اکوړی او زوی یې یحیی خان او لمسی یې شهباز خان درې سره د یوسفزو په جنگ کې مړه دي (۱۵۵۶ م ۱۶۰۵ م)، خوشحال خان هم د خپل پلار شهباز خان په ملگرې د یوسفزو د مشر "ملک باکو" سره جنگېدلی او زخمي سوی دی (۱۶۳۰ _ ۱۶۴۰ م)، خوشحال خان په دې وخت کې (۱۴) کلن و. د جهانگیر زوی شاه جهان هم د ده مشري منله او د جگت سنگه په مقابل کې یې جنگولی دی او شاهي خلعت یې ور کړی دی، خوشحال خان هغه ته د قدردان لقب ور کوي او د هغه وخت هندوستان جنت بولي، او داسي وایي:

لکه زه وم په راستي په دوراستي کې
د مغل په خدمت نه و بل افغان
د مغل له پاره ما توري وهلې
پښتنو به راته کړې ډېرې ښکنځلې
پښتانه مي په زر گونو دي وژلي
په سرونو به یې خره غوایي وه شلي
لا تر اوسه د سرونو یې انبار دی
په اټک او پېښور کې یې منار دی

سواتنامه

خوشحال خان د بنگښو سره په هنگو کې هم جنگېدلی دی او په ۱۶۷۶ م کې عبدالقادر ختک هم په دې جنگ کې زخمي سوی دی.

خوشحال خان بلخ او بدخشان ته هم راغلی او د مغلو په گټه جنگېدلی دی. کله چې شاه جهان کابل ته راتلی خوشحال خان استقبال ته ور وتلی دی، او هغه د یوسفزو څو کلي وربخښلي دي.

د یوسفزو مشر "باکو" ډهلي ته راغی د شاه جهان زوی "داراشکوه" ته یې شکایت وکړ داراشکوه بیرته خپلي کلي وروبخښل.

خوشحال خان په دې کار سره خفه سو او د داراشکوه دښمن سو. په (۱۶۵۹ م) کې د شاه جهان بل زوی اورنگ زېب پر تخت کښېنستی هغه د شاهي لارې محصول معاف کړ د خوشحال خان آدمني کمه سوه نو له مغلو څخه ښه پسې خفه سو.

خوشحال خان د (۵۱) کالو وچې مغلو په پښبور کې وتیوی او د هند د راجپوتانې په رنتبور په کلا کې یې دوه نیم کاله بندې کړ، او بیا څو کاله نظربنده و. ضمانت یې د کابل صوبه دار مهابت خان وکړ او آزاد سو، بیا یې نو د مغلو پر ضد مبارزه پیل کړه او بیا د مغلو په گټه استعمال نه سو. او داسې وایي:

د افغان په ننگ مې وتړله توره
ننگیالی د زمانې خوشحال خټک یم
بله لار لیدله نه سي په دا مینځ کې
یا مغل د مینځه ورک یا پښتون خوار

**د خوشحال خان د شاعرۍ اړخ**

پر څلورو برخو وېشل سوی دی
۱. وطنیت
۲. عشق
۳. اخلاق
۴. فلسفه

خوشحال خان د کائناتو حقیقت په خپل تېز عقابي نظر شلوي او د ژوند ښکلي تماشا بې نقابه او بې حجابه گوري، عقابي سترگې یې د مقناطیس په شان د حسن ذرات راټولوي او د نظم په شکل یو حسین ترتیب ورکوي.

د شاهین خویونه د هغه د فلسفې او پالیسۍ شاعري ده حق گویي، توکل، حمد، مناجات، عدل، احسان، سخاوت، شکر، صبر، همدردي، قول، عزم او سخت کوشي د هغه اخلاقي شاعري ده.

یعني د وطنیت سره تصوف هم گډوي.

د خوشحال خان قلب او دماغ د شاعرانه تنوع څخه لبریز دي چي جلال او جمال یې ښه انځور کړي د ذکاوت او لوړ خیال څښتن دی.

د شېر او شاهین د کردار ترجمان دی. د ننگیال د تصور څخه خوشحال خان مرد حُر، مرد مؤمن، مرد قلندر شریف، غیرتمن مسلمان پښتون مراده وي.

**علامه اقبال او خوشحال**

د علامه اقبال په شاعري کي هم خوشحا ل څلېري او غړومبیري او وایي چي:

نگاهی عشق دل زنده کی تلاش مین هی
شکار مرده سزاوار شاهباز نهین!

خوشحال داسي وایي:

لکه باز په لوی لوی ښکار زما نظر دی
نه چي گرځي گونگټ گرځي باد خورک یم

علامه اقبال د ده په باره کي وایي:

"در نی کلکش غریو تندر است"

یعني د گوتو په قلم کي یې تالنده غوریږي. او بل ځای علامه اقبال د ده په باره کي وایي:

خوش سرود آن شاعر افغان شناس
آنچه بیند، باز گوید بی هراس
آن حکیم ملت افغانیان
آن طبیب علت افغانیان
راز قومی دید بی باکانه گفت
حرف حق با شوخی رندانه گفت

خوشحال خان د ژوند د بې پناه او لایتناهي جد و جهد له پاره استاذ دی.

خوشحال خان عاشق مزاجه، حسن پرست و، خو عیاش او باش نه و، او د کوهستان د نصیحت کوونکي سعدي دی او کله کله د حافظ او خیام سره په گلگونه میخانه کي کښېني او کله کله د مولانای روم شاگرد سي.

د قهر په وخت کي شېر ببر دی او د مینې او محبت په وخت کي د شېراز هزار داستانه بلبل دی. د جنگ په وخت کي باتور، تېر انداز او شهسواره رستم دی. خوشحال خان خپله توره یوازي ملک الموت ته په افر بدو کې د (۷۶) کالو په عمر تسلیم کړه.

شیخ رحمکار وصیت کړی و چي ماته دي صرف خوشحال خان غسل راکړي ځکه چي په دې زمانه کي خوشحال خان عالم او پر شریعت محکم سړی دی.

**خوشال خان او اسلامي حکومت**

خوشحال خان د مغلو د نسلي او موروثي شهنشاهیت پر ضد مبارزه کول او ویل یې چي اسلام د وقار آدم او تکمیل اخلاق دین دی د وراثت پاچاهي په اسلام کي ځای نه لري، پسله پیر روښان څخه خوشالخان د پښتني نشنلیزم او د پښتنو د وحدت دوهم جرنیل او مؤسس دی، خوشحال خان اخلاقي جنگي او مسلمان پښتون غواړي. خوشال خان د خپل زوی بهرام او لمسي مکرم خان سره هم مخالف و، ځکه هغوی د مغلو څیره خواره وه او هغو اشرف خان هجري هم د دکن د بیجاپور په کلا کي بندي کړی و.

پاته په (۵۸) مخ کي

❁ كاكا اسدالله پوپل

## د مرغومي

# شپږمه

## يا افغان ولس ته د وير څخه ډكه ورځ

**يادونه** - بايد دا وه چي دا مقاله د (ليندۍ او مرغومي) مياشتو په ګڼه كي خپره سوې وای، دأ چي د كندهأر مجلې شپږمه ګڼه علامه رشاد بابا ته ځانګړې سوې وه ځكه نو د (سلواغې او كب)په ګڼه كي خپره سوه . اداره

د ګروموف د ليكني پر بنسټ "د جدي په درېيمه د ۱۹۷۹ م كال د دسمبر پر ۲۴ مه په مسكو كي د دفاع وزارت د رهبري هيئات په غونډه كي اعلان سوه چي د شوروي اتحاد مشرانو تصميم نيولی دی چي افغانستان ته خپل ځواكونه واستوي" او د دې سره سم د جدي پر ځلرمه د ورځي پر يوه بجه په مركزي آسيا كي د نظامي قوماندانۍ پنځه زره كسيزه فوځ د حيرتانو د پله له لاري افغانستان ته داخل سو .

د پراشوټ ۱۰۳ فرقه د پراشوټ له لاري د كابل په هوايي ډګر كي او د روسانو ۷۶ – L ترانسپورټي الوتكي په هرو درو دقيقو كي د كابل او بګرام په هوايي ډګرونو كي راكښته كېدې. او د توري بد مرغي ورځي تر پيل پوري په لس ګونو زره روسي ښكېلاككګر د ببرک كارمل په وينا د ستر شمالي ګاونډي هيواد محدود پوځي قطعات زموږ د هيواد پاكي خاوري ته داخل او د خپل لاسپوځي په مرسته يې د خپلو پخوانيو ارمانونو د پوره كولو لپاره نوي هلې ځلې پيل كړې .

د پيتر كبير له زمانې څخه د روسانو هيله وه چي كوچني هيوادونه خپل مستعمره او د شوراګانو د هيواد جز اعلان كړي. د هند تودو اوبو ته د رسېدو په لاره كي زموږ هيواد د دوی لپاره لوی خنډ و . دوی وغوښتل چي هغه كوچني او كمزوري كړي، ځكه يې د نولسمي پېړۍ په وروستيو كي د منځنۍ آسيا جمهوريتونه يو په بل پسې اشغال كړه . د افغانستان لوی ښارونه چي د هغو له جملې څخه لوی پامير. خوقند، مروه، ترمز او پنجده يې ونيول او غوښتل يې چي هرات او بادغيس هم د خپلې خاوري جز وګرځوي . د افغانستان ضعيف النفسه اميران له يوې خوا، د انګرېزانو او روسانو تر منځ د افغانستان د وېش لپاره بين المللي توطئې، له بلې خوا او همدا راز د اېران بې تفاوتی او زموږ د خاوري د سيستان څخه استفاده هغه عوامل وو چي افغانستان د شلمې پېړۍ تر پيل پوري ډېر كوچنی سو .

خو روسي يرغلګرو پر دې هم بسنه ونه كړه. د هند تودو اوبو ته د رسېدو په لار كي يې تر ولكې لاندي د افغانستان راوستل په خپلو هيلو كي شامل كړي وه، د كودتاګانو، غير عادلانه قراردادونو، سياسي قرار دادونو او بالآخره د يوې پلورل سوي او د هيواد له ملي ګټو څخه د بې خبري ډلي په استخدام سره يې په افغانستان كي د خپلو اهدافو د پراختيا لپاره زمينه برابره كړه .

كله چي د ثور د اوومي نېټې كودتا زموږ پر خلكو وتپل سوه، د افغانستان تاريخي پېښي له نامقدسو پېښو او

لنډمهالو بدلونونو ډکي سوې او ډېر وخت لا نه و تېر سوى چي د پخواني شوروي اتحاد ښکېلاکگرو زموږ په تاريخ کي يوه توره صفحه پرانسته . د روسي د ښکېلاکگرو او د هغوى د لاسپوڅي رژيم په وړاندي زموږ د مسلمان او افغان ولس د مبارزو تاريخ زموږ د هيواد په تاريخ کي يو نوى فصل او نوى باب پرانيست .

افغان مجاهدينو په خپل خوارلس کلن جهاد کي د شوروي يرغلگر زبر ځواک داسي په گونډو او ډړي وړي کړ چي لوېډيځوالو يې تصور هم نه سواى کولاى . که څه هم افغان مجاهدين د خپلو مبارزو په تاريخي بهير کي له ډېرو ناسمونونو او بې نظميو سره سره د روسي ښکېلاکگرو په وړاندي ښه تاريخي موقف وساتى او د ښکېلاکگرو د کمونستي او ديکتاتوري نظام په له منځه وړلو کي يې خپل تاريخي نقش تر سره کړ خو د راتلونکو عواقبو د په پام کي نه نيولو او د يوې مدني ټولني د جوړوني د پراختيا په اړوند د پروگرام نستوالى د دې باعث سو چي پخپله په دې اور کي وسوځي . د مجاهدينو د بې نظمي ادارې سره په افغانستان کي د رژيم د تغير سره د يو شمېر بېگانه پرستو شخصيتونو په راتگ سره زموږ په هيواد کي د بېگانه وو په لمسون د کورني جنگ اور لا پسي تازه سو . په حقيقت کي د افغانستان کورني جنگ د سيمه ايزو هيوادونو د تضادونو او رقابتونو محصول گڼل کېداى سي .

د يوه داسي نظام موجوديت چي د مجاهدينو د مقاومت په نتيجه کي بايد منځته راغلى واى او د ملت د ارادو مظهر او ښکارندوى واى د سيمه ايزو هيوادونو لپاره د منلو وړ نه و . زموږ هيواد د مختلفو سازمانونو تر منځ د کورني جنگ په نتيجه کي يوه له اختناقه ډکه دوره تېره کړه چي بيا يې هم د ډېرو تاريکو پېښو دوره زموږ د هيواد د تاريخ په پاڼو کي درج کړه .

د مرغومي شپږمه د افغان ولس لپاره هغه د وير ورځ وه چي آسمان هم زموږ پر گران هيواد د ناورين د وينو څاڅکي تويول، د همدې ورځي بدمرغه او کرغېړن سهار هغه سهار و چي نرۍ وړمو يې د ځان سره د وينو بوى راوړى او افغان باشهامته ولس ته يې د بدبختۍ زېرى ورکاوه .

د مرغومي شپږمه د هيواد په تاريخ کي هغه توره او د وير څخه ډکه ورځ ده چي افغانان به هر کال د دغي ورځي په راتلو د نابلل سوو ښکېلاکگرو مېلمنو د اعمالو څخه پرده پورته کوي او د هغوى ضد بشري اعمال به غندي . دا هغه توره ورځ ده چي د ښکېلاکگرو د لاسپوڅي نوى نظام د مشر ببرک کارمل بيانيه يې د تاشکند د راډيو له لاري د يوه تاجک وياند په خبري اعلان سره د افغانستان د ملت په نامه خو خلي خپره کړه او وروسته د راډيو افغانستان له لاري خپره سوه .

ببرک کارمل د ځان بر ياليتوب او د حفيظ الله امين د له منځه وړلو په باب خبري وکړې د هغه د بيانيې د متن څو ټکي په لاندي ډول وه :

" زه ببرک کارمل د افغانستان د خلق دموکراتيک واحد گوند د مرکزي کمېټې لخوا او د حفيظ الله امين د فاشستي رژيم د مرگوني سقوط په مناسبت چي د امريکا د امپرياليزم يو سفاک جاسوس، ديکتاتور او ولس غولوونکى و، تاسو مسلمانو، سنيانو، شيعه گانو، باتقوا علماوو او روحانيونو، ملي پانگوالو او سوداگرو، دولتي مامورينو، روشنفکرانو، مخکښو ځوانانو، ورونو او خوندو ته چي تر اوسه د امين د سرې وژونکو جلادانو او د تاريخ د شياوانو تر ساطول لاندي واست، درود استوم او شاباس درته وايم . او نړيوالو ته اعلانوم چي د آسيا په زړه کي د اميني فاشستي اداري د استبداد د زنځيرونو وروستى کړۍ ماته سوه او د آزاد افغانستان د درنو خلکو د واحد دولت ملي بيرغ بيا هسک سو " .

کارمل ټول پېښ سوي مصيبتونه د تېر رژيم پر اوږو باندي واچول، د شوروي د يرغلگر هيواد ( کا . جي . بي) جنرال لوکين په خپلو خاطراتو کي ليکي :-

" هم هغه ورځ چي حفيظ الله امين دروسانو له خوا مسموم کړه سو زه له اندروپوف سره چي هغه مهال د کا . جي . بي رئيس و ناسست وم، او د هغه د مسموم کېدو خبر راورسېدى، اندروپوف امر وکړ چي څومره ژر کېداى سي ببر ک کارمل ته بيانيه جوړه کړئ " .

د شوروي اتحاد د کمونستي گوند مشرتابه ته پر افغانستان باندي تېرى او تجاوز کوم نوى عمل نه و . تزاري روسيې په نولسمه او شلمه پېړۍ کي مختلفي سيمي اشغال کړي وې او په راوروسته کي کمونستي روسيې د مرغومي پر شپږمه په افغانستان کي د مستقيمي مداخلې له کبله وغوښتل د هند تودو اوبو ته ځان ورسوي چي دا هدف د دې ښکېلاکگر هيواد پخوانۍ هيله وه، دوى پخوا لا غوښتل چي د درېيمي نړۍ فقير او کوچني هيوادونه يې د خپل مارکسيزم، لېنينيزم په مفکوروي تضادونو کي محدود کړي واى .

زموږ هیواد هم یو د هغو فقیرو او کوچنیو هیوادونو څه دی چې د روسانو د ښکېلاک قرباني سوی او په افغانستان کې یې د خپلو لاسپوڅو ځان پلورونکو افرادو په واسطه د سیاسي ټولنیز نفاق تخم وکرلای سو او وده یې ورکړای سوه . روسانو فکر کاوه چې دا هیواد په یوه داسي پایګاه بدل کړي چې د هند بحر ترخپل سیاسي او اقتصادي نفوذ لاندي راولي .

په لومړي سر کې ښکېلاکګرو غوښتل د افغانستان د ملي او مذهبي شخصیتونو په له منځه وړلو سره خپلو اهدافو ته لاره خلاصه کړي . کمونستي رژیم د ښکېلاکګرو په مرسته د مذهبي او ملي شخصیتونو داسي ټولووني وکړې چې د نړۍ د هیڅ هیواد تاریخ یې ساری نه دی لیدلی . د ځان پلورلو د بې تجربې افغان کمونستي مشرانو او بې خبرو روسي مشاورینو اختناقي اعمال نه یوازي د روسانو په ګټه نه وه بلکي ولسي ځواکونه یې د اسلامي مفکورې له لاري په ټوله هیواد کې د مجاهدینو په نامه د حق غوښتني د مبارزاتو د یوې نمونې په توګه نړیوالو ته معرفي کړه .

د شوروي قواوو تجاوز د افغانستان په تاریخ کې د یوې توري پیښي په توګه د افغانستان د مېړني ولس د مبارزې د پیل او شوروي اتحاد د ماتي په توګه د نړۍ په تاریخ کې ثبت سوه چې نړیوال باید ددې غیرتي ولس ممنون او مدیون واوسي .



## تر ټولو پخواني مسافران په

خلکو د حال د څرنګوالي په اړه لوړ ارزښت لري، ځکه چې دغه سفرنامه د نوموړو هیوادونو د ټولیز مدني او فکري څرنګوالي په اړه ډېر د پام وړ او ګټور ټکي په خپله غېږه کې نغاړي .

مور کرافت بامیان او د هغه لرغوني مجسمې (بوتان) هم لیدلي وه، هغه مخکې له دې په لداخ کې ډېر بودایي آثار لیدلي وه، او ډېر معبدونه او بوتان یې تر سترګو تېر کړي وه، نو په دې توګه په دې وخت کې لومړی کس دی چې ویې کړای سول څرګند کړي چې د بامیانو بوتان په بودا پوري اړه لري .

ویل کیږي چې مور کرافت د لومړي ځل له پاره د هند انګریزي حکومت ته وښووله چې میمنه د اصیلو او قوي آسونو او غاطرو تر ټولو ښه مرکز دی چې وروسته هم د هند حکومت له میمنې څخه دغه اصیل نسل تر لاسه کاوه او په هند کې یې د آسونو د نسل د ښه والي له پاره ترېنه کار اخیست .



مریمه صالحي هوتک / امریکا

## زه به نه یم

زما پر ملک به شین بهار وي زه به نه یم
تیاره شپه به سپین سهار وي زه به نه یم

دا د خالي رالوېدلي تیست کډوال به
راغونډ سوي ښار په ښار وي زه به نه یم

دا د څو ویشتو کلو خزان به تېر وي
هره خوا به لاله زار وي زه به نه یم
نه به رغ نور د توپک وي نه به وهم
نه به بیا د روس بمبار وي زه به نه یم
د شهید قبر ته ناسته معشوقه به
خپل د مینې په اظهار وي زه به نه یم
د افغان ولس خواشان او تنکي ځوني
نور د کفره به کنار وي زه به نه یم
دا پتري نیولي شونډي به موسکۍ وي
هم به روغ د زړو پرهار وي زه به نه یم
لاس په لاس غاړه تر غاړه به ملت وي
د پردو سر به په دار وي زه به نه یم
ښارې مځکې به د سره سي آبادي
د بزګرو به تلوار وي زه به نه یم
ژړ غنم به د زرغون کښت ښه حاصل وي
د کوکنار کرل به عار وي زه به نه یم
پراخ دښتونه شنه باغونه به سمسور وي
د رمو کاروان به بار وي زه به نه یم
مستې سیندونه به مو بیا په څپو راسي
پر هر بند به جوړ آبشار وي زه به نه یم
د زړو مېنو به بیا تعمیرول وي
پوخ بنا، ځوان به معمار وي زه به نه یم

فابریکي او صنعت به بیا جاري وي
ټول خوانان به مو پر کار وي زه به نه یم

د عرفان ډېوه به بله وي د سره
او "مریمه" بې پکار وي زه به نه یم

✿ **ليکنه لوی استاد علامه عبدالحی حبيبي**

✿ ژباړه: روايت کندهاري

# په کابل کې دوه عجيبه کسان

**( ۱ ) آغا حسن خان ( موهن لال ):**

يو له عجيبو کسانو څخه چې د افغانستان په تاريخ کې د محمدزيو د دورې په لومړنيو کې يې له کارنامو سره مخ کيږو، موهن لال دی. چې د سدوزيو د کورنۍ د سقوط او د وزير فتح خان د وروڼو د عروج په وخت کې په افغانستان کې و او د انګرېز او افغان په جګړه کې د استعمار د پرمختګ له مهمو عواملو او د جاسوسانو له برياوو او د انګرېز په فعاليت کې مهمه ونډه لري .

په رښتيني ډول د داسي خلکو پېژندنه چې په بېلابيلو ډولونو يې د افغانستان په تاريخ کې کارونه سر ته رسولي دي. موږ ته ډېره په زړه پوري ده، ځکه چې له يوه اړخه د تاريخ يوه تياره زاويه روښانه کيږي او له بله اړخه بايد د هيوادوالو د عبرت سبب وګرځي چې د پرديو لاسونه په څه ډول او کومو وسايلو کار کوي؟

موهن لال د افغانستان په تاريخ کې زيات شهرت لري.او تر هغه وروسته چې کلونه ـ کلونه په افغانستان کې و. يو کتاب يې هم د (د امير دوست محمد خان ژوند) په نامه وکښئ او په دغه کتاب کې يې ډېر د سترګو ليدلي حالات راغونډ کړل چې د محمدزيو د دورې د موثق تاريخ له منابعو څخه ګڼل کيږي .

دغه نفر اصلاً مسلمان او نوم يې آغا حسن خان و، نيکونه يې د راجه منی رام کشميري له کورنۍ څخه ول او د اسلام په دين مشرف سوي ول. پلار يې ميرزا محمد شکوه نومېدئ چې د مولانا فخر له مريدانو څخه و، ده خپل زوی آغا حسن د دهلي کالج ته د زده کړې له پاره ولېږی او هلته يې پارسو او انګرېزي ښه زده کړه او د "فارسي منشي" په توګه د هند له انګرېزي واکمنو سره مقرر سو او ښايي د سياسي موخو په توسن يې ځانته د "موهن لال" په نامه شهرت ورکړی وي .

په لومړيو کې د مشهور برنس او ډاکټر جيراد سره د منشي په توګه مقرر سو او په (۱۸۳۲ م) کال کې ايران ته ولېږل سو او د افغانستان، ترکستان او خراسان په ګښت کې بريالی سو او دغه يونليک يې په (۱۸۳۴ م) کال په کلکته کې خپور کړ .

موهن لال په افغانستان کې خپل د سترګو ليدلي حالات د افغان او انګرېز د لومړي جنګ (۱۸۴۰ م) په دوران کې په يو کتاب کې وليکل چې د (امير دوست محمد خان ژوند) نوميږي . دی د ژوند تر پايه په دهلي کې و او په (۱۸۷۰ م) کال کې يې له دې نړۍ څخه سترګې پټې کړې او د انګرېزي استعمار له لايقو نوکرانو څخه ګڼل کېدئ او د (آردر اف دي امپاير ايند . . . يت آف دی آردر آف پريشن لائين) اعزاز يې لاس ته راوړ او کورنۍ يې تر اوسه په ډهلي کې سته .

د موهن لال مېرمن (حيدري بېګم) هم له پوهو او ليکوالو ښځو څخه وه، دغې ښځې د ډهلي د انقلاب د روځو په باب يوه روزنامچه د (غدر) په نامه کښلې وه، چې بيا په

۱۸۸۰ میلادي کال کي په ډهلي کي د انګرېزانو له خوا ضبط سوه او دوهم ځل بیا دغي ښځي یادي سوي پېښي له هغې روزنامچې څخه په ډېر لنډ ډول وکښلې. (۱)

موهن لال تر خپل لومړني سفر وروسته، دوهم ځل بیا په کال ۱۸۳۷ میلادي کي افغانستان ته راغلئ او دا هغه وخت و چي د هند ګورنر جنرال لارډ آکلینډ Lord Auckland د تجارتي اړیکو د پراخولو په نامه په کال ۱۸۳۶ م کي د اګسټ پر ۲۲ مه امیر دوست محمد خان ته یومکتوب ولېږئ او له دې سره په څنګ کي یې په کال ۱۸۳۷ م کي د مې پر ۱۵ مه نېټه یو تجارتي هیئت له یو لیک سره د امیر حضور ته ولېږئ. د دغه هیئت رئیس مشهور برنس Burns و او مېجر لیچ Leech، ووډ Wood او ډاکټر لارډ Dr.Lord چي نظامي کسان ول، هم په دغه هیئت کي داخل ول او موهن لال د دوی د منشي په توګه کابل ته راغلی. انګرېز هیئت څو میاشتي په کابل کي پاته سو، مګر له امیر سره یې مزاکراتو چنداني نتیجه ورنه کړه او په ۱۸۳۸ میلادي کال د اپرېل پر ۲۶ مه بیرته ناکامه هند ته ستون سو او دغه وخت و چي کاپیتان ولکویچ د روسیې ددولت له لوري کندهار ته راغلئ او تر هغه وروسته کابل ته ولاړئ او د افغانستان سیاسي اوضاع یې کړ کېچنه کړه. څرنګه چي د ۱۸۳۸ م کال د جنوري پر ۱۵ مه برنس انګرېزي حکومت ته د یوه مکتوب په ذریعه، کابل ته د زار روس د استازي د ننوتلو خبر ورکړ او دا یې په ډاګه کړه چي ایران او روس دواړه هڅه کوي چي د کابل په دربار کي خپل سیاسي نفوذ زیات کاندي.

موهن لال په افغانستان کي د خپلي بلدتیا پر اساس ددغه هیئت د سیاسي فعالیت مرکز و او له هغو سره یو ځای بیرته هند ته ستون سو. مګر د ده بل فعالیت هغه وخت پیل سو، چي انګرېزان د افغانستان پر خاوره د حملې په فکر کي سول او ویې غوښتل چي شړل سوی شاه شجاع بیرته د افغاني سلطنت پر ګدئ کښېنوي او د ده په ذریعه خپلي ټولي سیاسي موخي لاسته راوړي.

د دې کار له پاره تر ټولو وړاندي د سند او بلوچستان تامین اړین و، پر همدې اساس انګرېزانو برنس وګومارئ چي له رستم خان میرخیرپور سره معاهده لاسلیک کړي، مګر میر دغه تړون نه کړ لاسلیک او برنس ډېره موده سرګردان و.

استعمار غوښتونکو تل دا عادت درلود چي په کوم کار کي به ناکامه کېدل، نو د هندي جاسوسانو په واسطه بې چي د خلکو په خوی او عادت به بلد ول، ډېر مهم کارونه سرته رسول، څرنګه چي رستم د تړون له لاسلیکولو څخه ځان وپېچئ او برنس بیرته ښکارپور ته ناکام ستون سو، نو د دغه مهم کار سرته رسول یې پر موهن لال هغه دیوسیرته انسان ته وسپارئ او ده په خپل هغه مهارت سره چي درلودی یې، هغه تړون چي لس مادې لري د ۱۸۳۸ میلادي کال د ډسمبر پر ۲۴ مه او د ۱۲۵۴ سپوږمیز کال د شوال پر ۶ مه د انګرېز دولت په ګټه د رستم تالپور سره لاسلیک کړ او له هغه ساده شخص څخه یې امضاء واخیسته.

څرنګه چي بکر کلا د افغانستان د لښکرکښنې په دوران کي یو ځانګړی اهمیت درلود او انګرېز دولت هغه محاذ ته یوه ټینګه اړتیا لرله نو په دې اړه هم موهن لال له رستم خان سره مذاکرات وکړل او خپلي ټولي غوښتني یې په پوره مهارت سره په رستم خان ومنلې او له هغه څخه یې لاسلیک واخیستی.

په دې ډول نو موهن لال د انګرېز په لاس د سند او بلوچستان په تسخیرولو کي یو فعال عنصر و، څرنګه چي پر افغانستان تر حملې وړاندي د دغو دوو ملکونو تامین د برتانوي دولت له پاره ډېر مهم و، نو په همدې خاطر هلته د انګرېزانو فعالیت ادامه پیدا کړه او په ۱۸۳۹ م کال کي چي انګرېزي لښکر د شاه شجاع په مرسته د ښکارپور له لاري او د بولان له درې څخه د افغانستان پر لور حرکت وکړ، مکناټن او برنس دغه خواکونه اداره کول او موهن لال خپلي جاسوسي شبکې تر کندهاره غځولي وې، په دغه وخت کي د کندهار واکمنو، سردار کهندل خان او وروڼه یې چي تازه د تزار له استازي سره په تماس کي سول، خپل لیکونه یې په ډېر پټ ډول ولیکل او هغه یې د یو قزلباش سړي په لاس د بلوچستان د کلات واکمن میر محراب خان ته ولېږل تر څو میر پرې نږدې چي شاه شجاع او انګرېزي لښکر د کندهار پر لور له بولان درې څخه تېر سي.

موهن لال چي خپل جاسوسان یې له وړاندي په کندهار کي ګومارلي ول، د عبدالوهاب مستوفي په توسط چي د کندهار د سردرانو له مامورینو څخه و، ټول محرمانه مکتوبونه یې لاسته راوړل او انګرېزان یې د کارونو له امکاناتو او د کندهار له درباري سیاست څخه خبر کړل. څرنګه چي سردار کهندل خان او د کندهار خلکو د انګرېز لښکر په وړاندي په ځانو کي د مقاومت څواک لیدی او خپله سردار له کندهاره له څلورو زر و سپرو سره مقابلې

ته چمتو سوی و، چي په دغه وخت کي د موهن لال یو جاسوس چي محمد طاهر نومېدی او له ډېره وخته یې په کندهار کي له درباریانو سره مستقیمي اړیکي لرلې، د سردار کهندل خان وزیر او پېشکار ملانسو یې یرغمل ونیوئ او د مکناټن له لوري یې د تطمیع لیک ورته ولیکئ او بیا همدغه نفر و چي د سردار کهندل خان په کارونو او د کندهار په لښکر کي یې خلا رامنځته کړه او کهندل خان یې مجبور کړ چي کندهار پرېږدي او ایران ته ولاړ سي او پر دغه مهال د موهن لال د جاسوسانو فعالیت تر داسي ټکه رسېدلی و چي ددربار ډېر کسان لکه حاجي جان، عبدالمجید خان، غلام اخوندزاده او ملانسو یې هم د ځانو پلویان گرځولي ول او ځکه نو بېله کوم اوږده مقاومته د کندهار ښار سقوط وکړ او شاه شجاع او ولیم مکناټن د ۱۸۳۹ م کال د اپرېل پر ۲۵ مه په فاتحانه او سوبمن ډول هغه ښار ته داخل سول او په دغه وخت کي موهن لال ملانسو او ځیني نور جاسوسان او فعال کارکوونکي د انگرېزي لښکر واکمنو ته د جایزو او ډالیو د اخیستلو له پاره ورمعرفي کړل او گواکي دغه نفر یو داسي جرائیم و چي ټولي سپېڅلي او پاک کسان یې ککړول .

په افغانستان کي د موهن لال شوم فعالیت دوام وکړ او کله چي انگرېزي لښکر پر کابل ور وړاندي سو، د امیر دوست محمد خان زړه ور زوی سردار غلام حیدرخان مقابله پیل کړه مگر موهن لال دغه دفاعي نقشه په خپل شیطاني مهارت سره له منځه یووړه، ځرنگه چي له عبدالرشید خان د امیر له وراره سره یې له ډېره وخته پېژندل او په دغو وختو کي عبدالرشید خان د غزني په محاذ کي و، نو پر همدې بنسټ تر محاذ دباندي موهن لال هغه ساده ځوان یرغمل کړ او د غزني د سقوط امکانات او د سردار غلام حیدرخان ناکامي یې رامنځته کړه . سرجان د موهن لال د اهریمني مهارت په باب داسي لیکي :

عبدالرشید هغه وخت د موهن لال سره شناخته سوی و، چي د انگرېز تجارتي هیئت د امیر دوست محمد خان دربار ته راغلی و او داسي ځرگندېږي چي موهن لال د خلکو په اېلولو کي لوی لاس او پوره توانایي لرله، او دا د ده مهارت و چي په افغانستان کي یې د لومړي جنگ تر پایه دوام وکړ .

د غزني تر سقوط وروسته انگرېزي لښکر پر کابل یرغل وکړ او د موهن لال جاسوسي فعالیت هم دغه لور ته ځیر سو او د امیر دوست محمد خان په لښکر کي یې نیمگړتیاوي رامنځته کړې او د دربار ډېر مخور یې په چل او فرېب له امیر څخه پردي کړل، ځو چي د ۱۸۳۹ م کال د اگسټ پر ۷ مه کابل سقوط وکړ او شاه شجاع یو ځل بیا د پاچهۍ پر تخت کښېناست .

د لومړۍ جگړې په دوران کي موهن لال په کابل کي فعالیتونه کول او په دغه ځای کي یې ډېر ملگري پیدا کړي ول، چي یو له هغو څخه غلام خان دی او د دغه سړي په ذریعه یې ډېر مهم کارونه سرته رسول او د انگرېز تر . . . وروسته دغه نفر لدهیانې ته پناه یووړه او هلته یې ژوند کول غنیمت وگاڼه، ځکه چي د کابل تر تخلیې وروسته یې ژوند هلته مشکل و .

موهن لال خپل کتاب چي (د امیر دوست محمد خان ژوند) په نامه دی، په دوو ټوکونو کي کښلی دی، ډېر مغتنم مالومات یې د دربار د حالت، د ملت د سردارانو او مجاهدینو او ځیني هم د وطن پلورو په باب راغونډ کړي دي او د ده کتاب د پخوانۍ وضعي او د قام د ښو او بدو اعمالوآئینه ده .

داسي ځرگندېږي چي موهن لال د لومړۍ لویي جگړې له ناتار څخه روغ وتلی دی او په هند کي تر مبشتېدو وروسته یې خپل کتابونه خپاره کړي دي .

**( ۲ ) قاضي عبدالقادر خان، مشهور په قاضي قادرو**

په آریانا او ځیني نورو مجلو او تاریخي کتابو کي چي کله د اعلیحضرت امیر شېرعلیخان د دورې د عسکري او ادبي نهضت په باب خبره کیږي، نو د قاضي قادرو د نامه یادونه پکښي کیږي، ځکه چي دغه نفر د دغه نهضت له غړیو څخه و او د کابل د شمس النهار جریدې د گڼو په شاهدي چي په هغه وخت کي له بالاحصاره خپرېدله، د امیر د دربار لښکري سکرټر د (ایل ملټري سکرټري) و . او د عسکري اصولو کتابونه هم همدغه شخص له انگرېزي څخه په پاړسو وژباړل او عسکري اصطلاحات یې په پښتو ترتیب او رواج کړل، لښکري قوماندي یې په پښتو کړې او د لښکر . . . نومونه یې د کابیني د خلکو او د دولت د اراکینو په نومونو په پښتو ژبه خپاره کړل .

د شمس النهار جرېدې له ځینو گڼو څخه اوڅاربږي چي قاضي قادرو د امیر په دربار کي نفوذ، واک او شهرت لاره او په رسمي او ملي غونډو کي یې سیاسي او اصلاحي ویناوي کولې او موږ په افغاني مطبوعاتو کي د ده نوم په نېکۍ سره یاد کړی دی او د هغه نهضت له غړیو څخه مو

شمېرلی دی، مګر دغه عجیب شخص هم د موهن لال غونډي د استعمار د جاسوسانو له مهمو غړیو څخه شمېرل کیږي. مګر تر هغه هم خطرناک ! ځکه چي دغه نفر تر وروستی شېبې پوري د افغانستان د یوه دولتي سړي په لباس کي او د دغه ملک د یوه عنصر په توګه په کابل او د امیر په دربار کي پاته سو او چا یې هویت ونه پېژندئ، مګر لومړنی یاد سوی کس خو په ښرګنده بهرنی و او د دښمن په لیکو کي یې په ښرګند ډول کار کاوه . ما تر دا دوه کاله وړاندي لا قاضي قادرو د ده پخپله حقیقي څېره کي نه پېژندئ .

په ۱۳۲۷ ش کال کي مي د بلوچستان په کوټه (پښتونستان) کي یو سوداګر خوان په اروپایي لباس کي ولیدی. چي ځان یې د قاضي قادرو له لمسیانو څخه وښووئ، له هغه سره مي ډېره لېوالتیا پیدا سوه او څه ګړی مي مجلس ورسره وکړ، ځوان په انګرېزي ژبه یو چاپ سوې کتابچه راکړه چي د کوټي په البرت پریس کي یې چاپ کړې وه .

کتابچه مي په ډېره تلوسه ځني واخیستل، او په انګرېزي یې سرلیک په دې ډول دی :

Copies of Testiminials of Qazi Family

دغه کتابچه ځیني رسمي سندونه لري چي د انګرېزي دولت رسمي مامورینو قاضي قادرو ته سپارلي دي او د افغانستان او د کابل د دربار په امورو کي یې د ده د سترو خدمتونو تصدیق کړی دی او اسلافو و اخلافو ته سفارش کړی دی چي د ده د خدمتونو درناوی او قدر وکړي .

د انګرېزانو د دغو تصدیقونو له مطالعې څخه دا ښرګندیږي چي قاضي قادرو د دوی له لوري د یوه فعال غړي په توګه او د دوستانو په لباس کي یې د امیر په دربار کي کار کاوه او تر هغه وخته چي یاد سوی امیر له ناکامه د مزا رشریف پر لور تښتېدلی قاضي له ده سره و، تر هغه وروسته نابېره ورک سو .

دا دی زه د دغو تصدیقونو ژباړه د دغي مقالې په پای کي درنو لوستونکو ته وړاندي کوم چي بې له شکه د تاریخ یو تیاره اړخ روښانه کوي :

(۱)

ایندور _اګسټ، ۱۸۸۲

ګرانه دوسته ! د جولای د ۲۷ مي مکتوب مي تر لاسه کړ، خوشحاله یم چي په پوره امن سره پېښور ته را داخل سواست، او جوړ او روغ یاست . که په ایندور کي مي لیدلی وای، نو ډېر به ښه و، مګر اوس هم ښه دی چي د هندي حکومت دستوراتو ته انتظار وباسو، د ۱۸۸۰ کال تر سپتمبر وروسته له افغانستان سره اړیکي نه لرم مګر پوهېږم چي په ډېره دلاوري او شرافت او ښېله کوم ډاره، هغه دندي د کابل د پرېښوولو په حالت کي مي درسپارلي وې او پر تا مي باور کړی و، په ښه ډول دي سرته رسولي دي . ځکه چي زه په افغانستان کي وم، ستاسي له غیرت او لیاقت څخه ډېر ممنون وم او هغه مرستي چي له ما سره مو وکړې، ډېره مننه در څخه کوم . مخکي مي د هند د حکومت ځانګړې پاملرنه ستاسو خدمتونو ته رااړول، مګر بیا به هم هغوی ستا په ګټه ستاسي لور ته ځیر کاندم .

په دې کي هیڅ شک نسته چي د هند حکومت او د ویسرای اکسلانس تر ما زیات ستاسو پر خدمتونو چي په افغانستان کي مو کړي دي، اقرار کوي .

ستاسو رښتینی _لیپل ګریفن (۲)

(۲)

پېښور (۱۴) اپرېل ۱۸۸۴

قاضي عبدالقادر خان چي ډېره موده یې د هند د حکومت له خوا په کابل کي کار کاوه، یو لایق او فعال سړی دی او اوس هم د هغه ملک په باب ډېر مالومات لري او مبلغ (۳۰۰) روپۍ له بهرنۍ اداري څخه د معاش په ډول اخلي، دی چمتو دی چي د افغانستان په باب ډېر مغتنم مالومات او اطلاعات د برتانوي مامورینو په لاس کي ورکړي او ډېر تصدیقونه ورسره موجود دي، چي د کابل د وروستي جګړې په روڅو کي د مهمو مرستو او کارونو مصدر ګرځېدلی دی .

ډېر به خوشحاله سم چي دی په یوه مناسب ډول استخدام کړه سي، ځکه چي سرلیپل ګریفن د ده په باب ماته ډېر سفارش کړی دی .

جي ،جي کاردری (کمشنر)

J.J Cordery Commissioner

(۳)

ریزیدنسي ایندور، ۱۵ دسمبر ۱۸۸۴

هغه غوښتنلیک چي له افغانستان څخه د بیرته راګرځېدو پر مهال مي په ۱۸۸۰ کال کي د قاضي عبدالقادر خان له پاره ورکړی و، له هغه مامور څخه چي په لاس مي ورکړی و، ورک سوی دی او خوښ یم چي یو ځل بیا خپله هغه عقیده د قاضي د خدمتونو په اړه چي د

انګرېزي دولت له پاره يې په افغانستان کي تر سره کړي دي، بيا ځر ګنده کړم .

ما قاضي د ده د لياقت او هغو ژورو مالوماتو پر بنسټ چي د افغانستان په سياست کي يې درلودل، ځېل همکار او مرستيال ټاکلی و، سره له دې چي د پېښور د دواير و مشرانو دی نه پېژندی، ما ده ته د ازمويني موقع ورکړه او ده هم ډېر ارزښتمن خدمتونه په کابل کي ترسره کړل او د ده لارښووني په لازمو موارد و کي په بشپړ ډول ګټوري او سهي وې او ما هم دونه باوري وګاڼه چي هند ته د بېرته راتګ پر مهال مي د کابل د والاحضرت امير مخفي مصاحب وټاکی او ځېل خدمتونه يې تر هغه وخته سرته رسول چي محمدافضل خاڼ د برتانيې د ريزيډنټ په حيث کابل ته ورسېدی .

تر دې وروسته قاضي بېرته هند ته راغلی او زما په غوښتنه يې مبلغ (۳۰۰) روپۍ معاش د هند له حکومت ځخه واخيستی، مګر تر دې هم حقداره دی او د عقلي او جسماني فعاليتونو ځښتن دی او شک نه لرم چي د هند حکومت دې له ده ځخه د نورو خدمتونو غوښتنه وکړي، مګر که بيا زه افغانستان ته ولېږل سم، نو يقيناً چي له قاضي ځخه به مهم کارونه واخلم، ځکه چي دی د افغانستان په باره کي (نه يوازي کابل، بلکي هرات، کندهار او بدخشان) کي هم ډېر معلومات لري چي ما په هندوستان کي له نورو ځخه نه دي اورېدلي او نه له چا ځخه د دونده پراخو مالوماتو هيله لرم .

لېپل ګريفن، د هند د مرکزي حکومت ايجنټ

(۴)

ضلع هزاره، د اګسټ لومړی ۱۸۸۵

له ۲۰ کالو راهيسي قاضي عبدالقادر پېژنم، په پېښور کي د قاضي ځپلو کورنی د حکومت د پاملرني او مهرباني ور ګرځېدلې ده، په کال ۱۸۶۹ کي چي امير شېرعليخان کابل ته ولاړی، قاضي عبدالقادر خان و ــ ک او محمد جان ورسره ملګري ول او همدا ډول په کال ۱۸۷۹ کي له امير شېرعليخان سره تر ترکستانه ولاړل .

له ترکستانه تر راتګ وروسته امير يعقوب خان له کاره ګوښه کړ او ده په کونړ کي له يوه سيد کره استېدنه پيل کړه او له هغه ځايه يې ډېر مهم مکتوبونه چي د کابل د استريو پېښو په باب ول، وليکل او زما په ذريعه په يوه مناسبه موقع کي د هند حکومت ته ورانږدي سول .

تر دې وروسته قاضي بيا له سرلېپل ګريفن سره کابل ته ولاړی او هلته له امير عبدالرحمن خان سره پاته سو او په کال ۱۸۸۲ کي بېرته پېښور ته راغلی او د افغانستان د امورو په باب يې ماته ارزښتمن اطلاعات او نظريات راکړل، ځرنګه چي يو باتجربه، هوښيار او په کارونو کي ازمېيلی شخص دی، نو مجلس يې يوه ځانګړې دلچسپي لري او زه افسوس کوم چي اوس له اقتصادي ستونزو سره مخ دی او نه سي کولای په هغه ډول ژوند وکړي چي کلونه وړاندي يې درلودئ .

دبليو . جي . واټرفيلډ دسپرنټنډنټ کمشنر
W. G. Waterfield

(۵)

پېښور ــ ۴ مارچ ۱۸۸۷

ګرانه سرهوګوګ !

قاضي عبدالقادر له ما ځخه وغوښتل چي دغه ليک وکاږم او باور لرم چي په ليدلو به يې خوشحاله سئ، دی سرچارلس ګوک پېژني او ډېر وخت د امير شېرعليخان خارجي سکرټر او په کابل کي زموږ استازی و او هم د امير شېرعليخان له لوري په روسيه کي د Emissary مخفي جاسوس و .

اوس له ستونزو سره مخ دی او ښايي پر تاسي اغېز وکړي، دی ويسرايونه ګوري او ما او هغو ته لارښووني کوي .

ډبليو . جي واټر فيلډ

(۶)

سيملا ــ ۲۰ سپتمبر ۱۸۸۸

قاضي عبدالقادر زما ځخه وغوښتل چي د ده د خدمتونو تصديق پاڼه وليکم، دی يو ډېر ځيرک سړی دی چي نه يوازي په پېښور کي، بلکي په ټول هند کي شهرت لري، د کابل او سرحد په مسايلو کي د تخصص ځښتن دی، چي د هند حکومت کولای سي بيا له ده ځخه ګټه واخلي .

سي . ډبليو . اچيسن
C.W.Aichison

(۷)

پېښور ــ ۶ نومبر، ۱۸۸۸

ګرانه ! ډېر افسوس کوم چي زموږ شخصي اړيکي سر ته رسيږي، زه ستاسو له مجلسونو ځخه خوښ او ستاسو

له اطلاعاتو په ځانګړي ډول د افغانستان د مسایلو په باب ډېر ممنون یم .

تاسو د افغانستان، ترکستان او ګاونډیو هیوادونو پر پښتو د ربښتیني قضاوت او پربکړي ځښتنان واست او هغه چي ماته مو سفارش کړی دی او د خپلو تیرو تجربو له مخې مو قضاوت کړی دی او سهی تجویزونه مو د حکومت په واک کي ورکول، ډېره مننه در څخه کوم، تاسو له ماجراوو ډک ژوند لاره او هیله من یم چي د حکومت په منځ کي په پوره درناوي سره ژوند وکړئ او د یوه خوشحاله، آرام او آزاد ژوند درلوونکی واوسئ .

که کومه ستونزه او تکلیف درته پېښ سي باور لرم چي د حکومت مامورین به هیڅ همکاري او مرسته ونه دربغوي او شاید او باید ستاسو سره همدرده واوسي . زما پر وفا باور وکړه .

ډبلیو . جي واټر فیلډ

(۸)

اتمه تصدیق پاڼه د ۱۸۵۹ کال د اپریل پر ۱۵ مه په پېښور کي د ایچ .ادواردز A.Adwards کمشنر په لاسلیک کښل سوې ده او قاضي غلام قادر خان ته راجع ده چي د باور او اعتماد سړی او د سلطان محمد خان بارکزي د دربار غړی او د ۱۸۴۸ _ ۴۹ کلونو په جګړه کي د یاد سوي سردار ملګری و او د سرجان لارنس له لوري د تحسین وړ وګرځېدی او د ۱۸۵۷ کال په بحران کي یې انګریز ته خدمتونه وکړل او خپله نیم لک روپۍ پانګه یې وړاندي کړه او د ۴ لکو حدودو په شاوخوا کي هغه . . . چي له پېښوره اخیستل کېدې ګډون وکړ، هغه پربکړه چي له موږندو سره یې وکړه، د ده له غوره خدمتونو څخه شمېرل کیږي، چي د کپتان جیمس توصیې د منلو پر اساس مي یوه ښه جایزه ورکړه .

هغو کسانو ته چي تر ما وروسته د واک چاري په لاس کي اخلي، دا وړاندیز کوم چي قاضي غلام قادر خان له نظر وانه چوي او د سرحد او کابل په مسایلو کي د ده له جادویي نفوذ څخه کار واخلي، ځکه چي دی د برتانوي حکومت له وفادارو دوستانو څخه دی .

(۹)

نهمه تصدیق پاڼه هم د قاضي غلام قادر په نامه ده چي په ۱۸۸۲ کال د اپریل پر ۱۸ مه په پېښور کي د ای . برنس A.Burnis له لوري بارکزي سردار ته لیکل سوې ده او وایي چي : قاضي له خپل ورور سره زموږ سره د کابل د سفر په وخت کي په پېښور کي ډېر خدمتونه سرته رسولي دي، پلار یې ملا حسان د افغانستان له بومیان څخه و او ډېر ښه سړی و، چي ما په لعل پوره کي پیدا کړ او له هغه ځایه له شجاع الملک سره هند ته فرار سو .

(۱۰)

لسمه تصدیق پاڼه په شمال کارکورت پېښور کي د ۱۸۶۹ کال د جنوري پر ۱۵ مه د ودوارد Woodward لخوا لیکل سوې ده او د قاضي محمد جان په نامه ده چي د یاد سوي قاضي غلام قادر خان دریېم زوی دی . له تصدیق پاڼي څخه اوڅاریږي چي د قاضي محمد جان یو مشر ورور قاضي نصرالله جان نومېدی او په ۱۸۶۷ کي په پېښور کي وفات سوی و .

له پورتنیو اسنادو ښه څرګندیږي چي د یادو سوو قاضیانو کورنی د سردار سلطان محمد خان له وخته له افغاني واکمنو سره په راز کي وه او د برتانیې له پاره یې خدمت کاوه او د دغي کورنۍ د پردیو لومړنی خدمتګار ملا حسان نومېدی چي مشهور برنس د دکي په لالپوره کي ورسره کتلي وه او له شاه شجاع سره هند ته فرار سو .

تر هغه وروسته قاضي غلام قادر (د قاضي عبدالقادر ورور) د پېښور د سردارانو دربار ته لار پیدا کړه او په محرمانه ډول یې د انګریز چوپړ ته ملا وتړله، د کابل خلکو ته د قاضي عبدالقادر داستان معلوم دی، چي د امیر شېرعلیخان په دربار کي یې نازونواز درلود او له دغو اسنادو اوڅاریږي چي روسیې ته هم د جاسوس په صفت تللی و، څه چي په نظر راځي دا دي چي قاضي قادر او د امیر شېرعلیخان تر سقوط وروسته په کابل کي نه دی لیدل سوی مګر دغه عجیب شخص تر مزار شریف پوري له پاچا سره ملګری و او غالباً یې د مرګ پر بستر حاضر و او وروسته تر هغه چي هغه یې خاورو ته وسپاری، بیرته کابل ته راغلی او د ګریفن له لوري د امیر عبدالرحن خان په دربار کي وګومارل سو .

مګر د امیر عبدالرحمن خان په دربار کي بیا چا دی نه دی پېژندلی .

دا و د دوو عجیبو جاسوسانو داستان چي د کابل دربار ته یې لاره درلوده او ما د ژوندیو د عبرت له پاره ولیکئ او نالیدلي اسناد مي ښکاره کړل .

پاته په (۷۱) مخ کي

د مقیم بقا په قلم

## په

# ایډز

## هغه کسان ډېر اخته کیږي چي ناوړه جنسي کړنو ته يې ملا تړلې وي

درنو لوستونکو ته به یه پوښتنه په ذهن کي ورګرځي چي ایډز څه شي دی؟ هو! د ۱۹۸۱ زېږدیز کال پسرلی وُ، امریکایي روغندویانو ځیني امریکايي ځوانان د چنګاښ د بېلابېلو رنځونو د مخنیوي له پاره تر درملني لاندي نیولي وو. دغه ځوانان د همجنس بازۍ په ناوړه خوی اخته وه، د ډاکترانو ډېر ژر دي ته پام سو چي هغوی په یوه نوي او نابلده رنځ اخته دي. د هغوی درملنه يې وکړای سوای.

بیا د امریکا ټول ځانګړ پوهان او پوهنیز منځکي (مرکزونه) و ګمارل سول څو په دې برخه کښي څېړني وکړي، څو د ایډز د ناوړه رنځ وایروس (H I V) يې وموندہ. چي د بدن د معافیت ټول توان او سپک تر بریدو لاندي راولي او هغه له منځه وړي. دا يې هم څرګنده کړه چي دغه مکروب د یوه کاناډايي همجنس بازه څخه د امریکا خلکو ته راکوچېدلی دی.

ځانګړ پوهانو چي څېړني مخته یووړې دا يې هم څرګنده کړه چي دغه مکروب د ۱۹۵۹ کال څخه په انسانانو کي موجود وُ، او د دغه مکروب بشپړ تابه د ایډز رنځ رامنځته کوي. اوس په نړۍ کښي ۴۲ ملیونه انسانان په دغه ناوړه رنځ اخته دي. چي په دغه شمېر کښي په سلو کښي نوي په ځان نه وي خبر چي په پړي کښي يې دغه وژونکي وایروس ځای لري. ولي چي د دغه وایروس د نښو څرګندېدو ته د یوه کال څخه تر ۱۴ کلونو پوري موده پکار ده.

دغه وایروس د بدن یا پړي په اوبلنو برخو کښي ښه وده کوي، لکه: وینه، مَني، د مور په شیدو او د ښځینه فرضځایونو په ترشحاتو کښي.

د دې رنځ اصلي سرچینه اخلاقي کوږوالي او اخلاقو ته شا اړول دي، خو د دغې ګناه څخه کوچنیان هم ځوریږي، د هغو سیمو اړ خلک هم ځوریږي چي د وینو صادراتو کمې احساسوي، لکه اېران چي په خپل هیواد کښي د ایډز څرګندتیا د وارداتي وینو څخه ګڼي.

دغه ناوړه رنځ په افریقا کښي د سرتاسري واک مونډلو پولي ته رسیږي، امریکا، اروپا او هم د اسیا ځیني سیمي يې هم تر ناوړو پلونو لاندي لړزیږي.

خو د نېکه مرغه اسلامي هیوادونه یې د امریکايي او اروپايي هیوادونو په پرتله ډېر لږ له غاړي څخه را ټینګ کړي دي. چي وړتیا يې هم په اسلامي منلې کړنلاره کښي ده. چي زنا او

لواطـت د لويـو گنـاهونو څخـه يکښـي شـمېرل سويدي .

د نېکه مر غه زموږ گران هيواد افغانستان د دې ناولي رنځ څخه په امان وُاو لاملونه يې هم دا وو چي د جگړو لـه املـه د باندنيو اشخاصو سره د اړيکو د لوږي کچي خلاص وه، زموږ منلو دودونو او اسلامي منلو اصولو هم د دې رنځ و تور مخ ته کاته گناه گڼل، خو د بده مرغه اوس يې دلته هم خر ک راڅر گند سوی او د عامي روغتيا په وزارت پوري اړونـد د ايـډز د مخنيـوي د څـانگي مسئول روغنـدوی نقيـب الله صـافي وايـي چـي تـر اوسـه د ايـډز ۱۵ پيښـي ثبـت سـوي دي . چـي د هغـوی څخـه يوازي پـه ۲۰۰۲ کښي اووه موارده پـه کابل، بادغيس، خوست او ځيني نورو سيمو کښي تـر سـتر گو سوي دي . چي لاملونـه يې يـوازي او يوازي د کډوالو په ستنېدو او يا د وينو په کوچېدو کښـي مونـدلای سـو، او تـر څـنگ يـې د دبانـدنيو کسـانو پـه ځـانگړې توگـه ښځينـه ډلـو هغـه زيـات تـگ راتـگ چـي پـه دې دوو کـالو کښي يې کچـه لوړه سوېده هم رول نه سو هېرولای، په دې ځای کښي وړ گڼم چي د حکومت ځانگړي او مسئولي څانگي په چټکې سره لاس په کار سي او ځانگړو وقايوي لارو چارو او پياوړو هڅو تـه ملاوي وتړي څو دغه ناوړه رنځ د ودي څخه راو گرځوي، او هم دينـي عالمـان او د اړيکـو ټـولنيز منځکيـان لکـه راډيو، ټلويزيون او ورځپاڼي هم و تبليغ ته ليچي راولغړي څو خلک خبر او پاملرني يې د دې ناوړه رنځ ناولتيا ته راواړوي .

ځوانان بايد په ځانگړې توگه و هڅول سي څو و اخلاقـي اصـولو تـه او هـم افغـاني منلـو اخلاقـي پابنـد يو تـه پـه درنـه و گـوري، د ودونـو پـه برخـه کښـي ځوانـان او ځوانـاني يـوه او بـل تـه وفـاداره واوسي .

پـه ټولنـه کښـي سـلمانيان او د لابراتورونـو او روغتونونـو مسـئولين هـم د ږيـرو خريلـو او د سـتنو څخه د گټي اخيستو په مهال کښي زيات احتياط وکړي .

خو په لويه کچه د دې ناوړه رنځ د مهار پدو په لاره کښي روغتيايي، امنيتي او قضايي ار گانونه پـه خپـل گـډ کـار سـره ښـه خـدمت او چوپـړ کـولای سي .

اوس چي پـه کابل کښي د باندنيو او کورنيو کسانو لخوا د نـاروا مراكزو د تأسيس گنگوسې دي، دا هـم د پـاملرني وړ دي، کنټرول يـې ضـرور دی کـه څـه هـم جنـرال بابـه جـان دغـه گنگوسـې ردوي خو خدای دي وکړي چي همداسي وي .

خو هر څه چي وي د څو تنو د شهواني تمايلاتو د سر ته رسېدو له پاره ټولنه نه بايد نذرانه سي، د پور تـه غوښتنو سره و هيواد تـه پرانستي لاري هم بايد په کلکه وخارل سي څو پـه دغـه رنځ داختـه کسانو د راتللو څخه اصولي مخنيوی سوی وي .

چي په دې توگه بـه مو پـه هيواد کښي د دغـه تور مخي رنځ وژونکي منگولي لنډي کړي وي، پـه دې لاره کښي دي لوی څښتن ﷻ مسئولينو او ټولو هيوادوالـو تـه دا تـوان ور کـړي چي تـر ډېره د دغه تور مخي وايروس څخه زېږنده رنځ ونه ويني .



**پـه کابل کي دوه عجيبه . . .**

**لمن ليکونه**

۱. قاموس المشاهير، ج ۲ ص ۲۴۲ .

۲. دغه تصديق د Lepal Griffin په لاسليک د قاضي قادرو په نوم ليکل سوی دی او گريفن د انگرېز له مشهورو خلکو څخه و، چي د امير شېرعليخان او يعقوب خان د سلطنت تر سقوط وروسته يې کابل امير عبدالرحمن خان ته ور تسليم کړ. (۱۷ شعبان ۱۲۹۷ ـ ۲۱ جولای ۱۸۸۰) او کله چي له افغانستان څخه راغلی نو د انگرېزي دولت د استازي په توگه د هند د ايندور په ايالت کي مقرر سو .

د عبدالولي شجاعت ژباړه :

# ژوي اټکل کوي



دا چې ژوي کولای سي زلزله مخکې له مخکې اټکل کړي، ډېر پخوا ځرگنده وه، د بېلگې په توگه د میلاد څخه درې سوه او اته ویشت کاله دمخه د یونان د لیلنکوس د ښار د ړنگېدو څخه څو ورځې دمخه د هغه ښار د شاوخوا ټولې ړندې مېږې او خېکې د خپلو سورو څخه و تښتېدې، په لرغوني بین النهرین، جاپان او چین کې د طبیعت د غضب اټکلونکي ژوي ستایل کېږي .

خو په وروستیو لسیزو کې د اټکلوونکو ژوو په باب نوې او تازه خبرونه ډېر لږ لیدل کېږي ځکه چې اوس داسې حساسې آلې منځته راغلي دي چې د مځکې د لاندې سگنالونه ثبتوي .

نوموړې آلې سره د دې چې ډېرې حساسې دي بیا هم نه سي کولای چې د نژدې کېدونکې ټکان په باب باوري او سم اټکل وکړي . ژوي معمولاً د زلزلې څخه لږ څه دمخه غیرعادي حرکتونه پیلوي، او له همدغه کبله دي چې د زلزلې پېژندنې په علمي ادبیاتو کې یې یادونه کېږي .

د زلزلې د اټکل په باب د روسیې په ملي پروگرام کې چې د ملگرو ملتونو د سازمان پورې اړوند دی د زلزلې د اټکل په برخه کې د ژوو د غیرعادي چلند د ځرگندولو او زده کولو تر نامه لاندې یوه ځانگړې فصل ته ځای ورکړه سوی و .

د بیولوژي پوهان د ژوو دا ډول غیرعادي چلند کټ مټ د هغه عکس العمل په څېر چې حیوانات یې په نورو وختونو کې د بېلابېلو سببونو له کبله کوي بولي او د دغه ډول عکس العمل دوه ډوله په لاندې توگه را په گوته کوي .

لومړی عکس العمل د عمومي احساساتي حالت د بدلون سره اړوند دی چې د ناځرگندې اندېښنې چې د زیاتې آرامۍ له مخې تشخیص کېږي . لړزې، انگولا او رنباړو په نتیجه کې رامنځته کېږي .

دوهم عکس العمل هغه ځرگند چلند گڼل کېدای سي چې د خطر د رامنځته کېدو ښکارندوی دی، ژوي په منډو وهلو پیل کوي او له یوه ځایه څخه بل ځای ته ځي . . . کېدای سي چې د عکس العمل دغه دواړه ډولونه د راتلونکو ټکانونو د شدت لېرې والي او وخت د ټاکلو له پاره گټور تمام سي .

تر هغه چې ځرگنده سوې ده اویا ډوله ژوي د زلزلې اټکل کولای سي چې یو شمېر یې د زلزلې په اټکلولو کې ستر رول لوبوي لکه : سپي، لوی ښکرور گوزن، موږک او مېږه .

خو دا د دې معنی نه لري چې گوندي په پورته ډول یاد سوي ژوي کوم ځانگړی عقل لري او یا ډېر زیات حساس دي . د دې سبب یوازې او یوازې دا دی چې نوموړي ژوي د انسانانو سره ډېر نژدې اوسېږي او له همدغه کبله دی چې انسانان غیرعادي چلند تر ټولو لومړی په همدغو ژوو کېویني .

متخصصان وایي چې ژوي د هغوی زلزلو اټکل کولای سي چې شدت یې څلورباله او یا زیات وي . د ژوو په چلند

کي غیرعادي بدلونونه معمولاً د لومړني تکان نژدې ۲۴ ساعته د مخه منځته راځي، او تر هغو چې زلزله کیږي دا بدلونونو ته ساعت په ساعت او یا په پای کي دقیقه په دقیقه او ثانیه په ثانیه زیاتیږي .

خو له بله پلوه سمدستي دا ډول دوه اړخیزه پوښتنه پیدا کیږي چې آیا ژوی تل د زلزلې اټکل کولای سي او د هغوی د غیر عادي حرکتونو څخه وروسته زلزله کیږي؟ دغه پوښتنه د زلزله پېژندني د ترمنالوژی له مخي دا ډول مطرح کیږي :

آیا امکان لري چې اټکلوونکي ژوي دا ډول غلطي وکړي لکه هدف خطا کول او یا دروغجن خطر ؟

په رښتیا هم د زلزلې څخه دمخه د ژوو حرکتونه د یوه سم او ډاډمن اټکل په توګه نه سي ګڼل کېدای . په روسیه کي د وروستیو دوو سوو کلونو په اوږدو کي د ژوو اټکل په سلو کي د دېرشو قوي زلزلو په باب سم و .

خبره په دې کي ده چې د زلزلو د لسګونو شاخص اټکلوونکو له ډلي څخه یو هم په سلو کي سل سم اټکل نه سي کولای . دا چې د مسئلې پېچلتوب په دې پوري هم اړه لري چې د ځمکي لاندي زېرمي د (درواغجن خطر) سګنالونه رارسوي او یا د خپلو توپانونو (په تیاري باندي پرده اچوي) نو ویلای سو چې د ناسم اټکل له کبله د ژوو شمېرل هم عادلانه کار نه دی .

اوس دا هلي ځلي رواني دي چې څرګنده سي چې کوم جیوفزیک جریانونه په ژوو کي غیرعادي چلند رامنځته کوي او ژوي د ځکي د کرې مکروسمیک فعالیت د هوا د فشار او د ځکي د جاذبې قوي بدلونونه د ځکي د لاندي اوبو د سطحي څخه د ګازاتو افرازات څه ډول احساسوي؟ همدارنګه له دې سره یو ځای پوهان غواړي په ژوو کي هغه آلې یعني اورګانونه کشف کړي چې طبیعت وربخښلي او جیوفزیک بدلونونه احساسولای سي .

پوهان داسي نظر لري چې د چاپېریال د عمل په وړاندي د ژوو عکس العمل یو دفاعي خاصیت لري چې د اوږده تدریجي تکامل په نتیجه کي هغه وخت چې په ځکه کي یوازي هغو ژوو ژوند کاوه چې د ناڅاپي پېښو په وړاندي یې په لازم وخت کي د احساس ا وځان ژغورني وړتیا درلوده منځته راغلي . د بیلګي په توګه هغه بڼونه چې نژدې پېښېدونکي زلزلې له کبله پیدا کیږي انسانان نه سي اورېدلای خو ژوي یې ډېر ښه اوري او د چیوفوني ځانګړي آلې یې په آسانۍ سره ثبتوي .

اوس اوس د تجربو په نتیجه کي په ژوندي اورګانیزم باندي د بېلابیلو الکترومقناطسي ساحو او د هغوی له ډلي څخه د ډېر عادي شدت د اغیزي په برخه کي ډېر مواد تر لاسه سوي، نوموړي تجربې د ډېرو عادي مصنوعي ساحو د تولیدونکو آلو په مرسته تر سره سوي دي . بیوفزیک پوهان وایي چې ان ډېري کوچني الکترومقناطیسي ساحې هم کولای سي چې په ژوو باندي د احساسېدو اغېزه وکړي .

د زلزلې د ټکانونو شدت، لیری والی او وخت د ژوو له منډو وهلو څخه اټکل کېدای سي .



**حضرت عمر ﷺ فرمایي :**

- ✓ په ځان باور د نېکمرغـي د تـاداو لومـړۍ خښتـه ده.
- ✓ تــش لاس او تنګســـه د دنیـــا او آخـــرت د مختورۍ پنګه ده.
- ✓ پور لږ واخله چې آزاد او هوسا ژوند وکړې.
- ✓ فضل او ادب ډېر ښه میراث دی.
- ✓ ژر ـ ژر او بې ځایـه مـه قهرېږه او چاتـه بـده خبره مه کوه، چې بـده وانـه وړې او خوږ وخت دي تریخ نه سي.
- ✓ د بېکـاره سړي دمـاغ د شیطان خونـه ده. لـه کارکوونکي سړي څخه شیطان لیري تښتي.
- ✓ سړي پر درې ډولـه دي : **کامل، کاهل، لاشي.** کامل هغـه څـوک دی چې د خلکـو پـه سلا او مشوره کار کوي. کاهل هغه څوک دی چې پـه خپل فکر کار کوي او له چانـه سلا او مشـوره نه اخلي. لاشي هغه څوک دی چې په خپلـه هـم نه پوهیږي او لـه چانه مشوره هم نه اخلي.
- ✓ څوک چې مـو بـد ایسـي د هغـه لـه ضرر څخه ځان وژغورئ.



جمیله همت

# د سترخوان ښایست

**ځیل سترخان باید څنګه ښایسته کړو؟**

د دې لـه پـاره چـې مـوږ ښکلـی سـترخان او اشـتها راوړونکي خواړه ولرو باید د هغو ښایست او خوندور توب ته ځیر سو . ځکه چې ښکلی سترخان نه یوازې د خلکو د اشتها لامل کیږي، بلکي ټولـه ار باسي چې توصیف یې هم وکړي چې البته دا پخپله یو هنر دی چې یوه باسلیقه مېرمن یې ارومرو باید ولري . ځکه پخلی ببله سلیقې او ښایسته بشـپړ نـه بلـل کیږي .

موږ کولای سـو پـه ډیـرو ساده وسایلو، لږ دقـت او توجـه سبزي او مېـوې په ښکلو شکلونو جـوړ کـړو، څـو زمـوږ د خـوړو د ښکـلا لامـل وګرځـي . مـثلاً کله چې چرګ سور کـړو او پـه غـاب کـي یـې کېښـږدو دونـه ښکلـی نـه معلومیـږي، خو کـه یـو څـو الغې رومیـان یـو څـه چپس او څـو پـاڼي ګشنیز، نعنا، کاهو یا کرم ورسره کېښږدو یوه خاصه ښکلا پیدا کوي او هغه سور کړی چرګ ښایسته کوي .

اوس مـوږ د سـترخان د ښکـلا څـو ډولـه یادوو :

لومړی : یو څو دانې شنه پیاز او یو څو دانې سرې مولۍ پاکي کړئ، شنه پیاز چې اوږدوالی یې څلور یا پنځه سانتي وي په چاره څلور یا شپږ ځایه کړئ، خو پرې کوئ یې مه . بیا دغه پیاز په ډیرو یخو اوبو کي واچوئ، سرې مولۍ هم د ګل په شکل جوړې کړئ، یا یې داسې څلور ځایه کړئ چې سره بیلې نه سي، په یخو اوبو کي یې واچوئ، نیم ساعت وروسـته یـې راواخلئ .



بیا یوه دانه غټـه ایشـولې پټاټـه سـپینه کـړئ، د غوري پـه منځ کي یې کېښـږدئ، پیاز او مولۍ د غاښو د خلال پـه خاشـو وپیيـئ لومـړی مولۍ، بیا پیاز پـه خاشـه وپیيئ او دغـه خاشې پـه پټاټـه کي جګې کړئ، د پټاټې شاوخوا ته میده سوي ګشنیز، کرم یا کاهو واوړئ، او د ګـل پـه ډول یـې د سـترخان پـه منـځ کـي کېښږدئ .

دوهم : د زرد کو څخه کولای سئ چې ډېر ښه، ښکلي شکلونه جوړ کړئ، توري او ژړي زرد کي الغه الغه کړئ، د غوري پر څنډو باندې یوه توره الغه یوه ژړه الغه واوړئ، خو

د غوري ځنډه په رنګينه سي . بل د خلال په ډول د سلاتې د ښکلا له پاره کار ځني اخيستلای سئ . بل تاسي کولای سئ چي يوه زرد که د درو يا څلورو سانتيو په اندازه پرې کړئ او د زردکو شاوخوا لړ لړ په چاړه چاک چاک کړی او د زردکو الغې په دغو چاکو کي لږ دننه کړی يا د غاښو د خلال په خاشو دغه الغې د زردکي په چاکو کي ټينګي کړئ دا ډېر ښه ښکاريږي . خو داني جوړي کړئ د کباب يا چرګ سره يې کښېږدئ .

درېيم : يوه دانه غټ شين، خوږ مرچک او يوه دانه غټ سور، خوږ مرچک که ژړ يا نارنجي رنګه مونده سي هم به ښه وي . دغه مرچک نازک الغې الغې کړئ بيا يې په يخو اوبو کي واچوئ بيا هر خوړه چي تاسي غواړي چي په ښايسته يې کړئ، د هغو شاوخواته يوه الغه شنه، يوه سره، يوه ژړه واوړئ او د خپلو خوړو خوند او ښکلا لا په ډېره کړئ .

څلورم : يوه دانه غټه مولۍ راواخلئ په چاړه يې داسي الغه الغه کړئ چي الغه له مولۍ څخه جلا نه سي، يعني منځ يې مه پرې کوئ . يوه دانه نازک بادرنګ دغسي جوړ کړئ، خو سپينوئ يې مه، بيا يې په يخو اوبو کي واچوئ، يو ساعت وروسته يې راواخلئ او د سلاتې سره يې کښېږدئ .

پنځم : يوه دانه سپين پياز چي ښه ګردی وي پوست کړئ، او په تېره چاړه يې الغه الغه کړئ، په يخو اوبو کي يې واچوئ بيا دغه پياز د ځنځير په ډول د سلاتې پر سر واوړئ .

شپږم : يوه دانه، نه غټ او نه کوچنی، ګردی پياز په چاړه شپږ اوه ځايه داسي پرې کړئ چي سره جلا نه سي، په يخو اوبو کي يې واچوئ، يو ساعت يې په اوبو کي پرېږدئ چي سره وغوړېږي بيا يې په سلاته کي کښېږدئ .

اووم : رومي څلور ځايه داسي پرې کړئ چي سره جلا نه سي، په غاب يا غوري کي يې کښېږدئ، په منځ کي يې لږ ميده سوي ګشنيز کښېږدئ .

اتم : يوه دانه کلک سور، رومي سېب غوندي سپين کړئ او د لاندي خوا څخه يې چپه وپېچئ چي ګل غوندي جوړ سي، بيا يې د خوړو يا سلاتې سره کښېږدئ .

نهم : د يوه ګردي غوري په منځ کي يو څو د پوڅي ټوټې کښېږدئ بيا ميده سوی کرم يا ګشنيز يا کاهو په

غوري کي د پوځي شاوخوا ته واچوئ او وروسته سرې مولۍ چي دمخه مو د گل په شان جوړې کړي وي ورسره واوډئ .

لسم : که د کاهو سلاته جوړوی، د کاهو پاڼي میده کړئ او د کاهو مغز دغسي پرېږدئ بیا یوه دانه رومی د مالتې د ډېرو په څېر پرې کړئ او په غوري کي یې د گل په ډول کښېږدئ. د کاهو مغز یې په منځ کي ودروئ او د کاهو میده سوي پاڼې د رومي شاوخوا ته واچوئ .

یوولسم : څلور دانې ایشولي هگۍ، یوه دانه رومی، شل گرامه کوچي او مالگه د اړتیا په اندازه راواخلئ، ایشولي هگۍ په اوږدو دوه ځایه کړئ، د هگۍ ژړ ځني راوباسئ، کوچي او مالگه ورسره گډه کړئ، بیا دغه مواد د کریمو په ځانگړي ماشین کي واچوئ، یا یې په پلاستیک کي واچوئ، پلاستیک ټینگ غوټه کړئ او د لاندي خوا یې لږ غچي کړئ، پلاستیک کښېکاږئ د هگیو منځ د گل په ډول یا د آیس کریم په ډول ډک کړئ، رومی د مالتې د ډېري په ډول ډېري ډېري کړئ یوه ډېره د هگۍ د منځ په موادو کي لږ کښېکاږئ او دوې پاڼې نعنا یا گشنیز یې وارخو ته کښېږدئ. دا هگۍ د هر ډول کبابو او خوړو سره ښه ښکاري .



دوولسم : څنگه چي مستې سپیني دي تاسي کولای سئ چي یو څو پاڼې نعنا یا گشنیز د گل په ډول پر واوډئ یا لږ زعفران یا ژړ رنگ د یوې کاچغي مستو سره گډ کړئ او بیا یې ټکي ټکي پر مستو باندي واچوئ او په منځ کي یې نعنا یا گشنیز کښېږدئ .

دغه راز یوه ټوټه چمبر خیال پر مستو کښېږدئ بیا یوه دانه سره مولۍ ډېري ډېري کړئ او د گل په ډول یې د چمبر خیال سر ته کښېږدئ، او چمبر خیال ته د نعنا بلگونه ور کړئ . دغه راز د میده سوي وچي نعنا څخه ډول ډول شکلونه پر مستو باندي جوړولای سئ . مثلاً په نعنا باندي A B C پر مستو باندي وکاږئ، یا یې د گل په ډول پر وپاشئ، مستې ډېري ښې معلومېږي .

دیارلسم : نارنج پر منځ دوه ځایه کړئ، بیا د هرې ټوټې پوست ته په چاړه کنگرې ور کړئ او د سلاتې پر منځ یا اړخو باندي یې کښېږدئ .

څورلسم : تاسي کولای سئ چي لیمبو هم په څو شکلونو جوړ کړئ، لېمبو گردي الغه الغه کړئ او د خوړو سره یې کښېږدئ . بل لېمبو داسي الغه الغه پرې کړئ چي په منځ کي سره جلا نه سي دا لېمبو چي سره کش کړئ په هره الغه کي یې یوه دانه الوبالو یا زیتون دانې کښېږدئ، ډېر ښکلي معلومېږي . یا لېمبو ډېري ډېري کړئ، په کباب یا سلاته کي یې کښېږدئ .

پنځلسم : شپږ دانې هگۍ، درې دانې رومیان، لږ رُب یا سره گړي رومیان راواخلئ هگۍ وایشوئ، سپیني یې کړئ، رومیان دوه ځایه کړئ، د منځ مغز یې راوباسئ، مالگه پر ودوروئ، یوه دانه هگۍ په نیمه دانه رومي کي کښېږدئ، پر سر یې لږ د رومیانو رُب (کېچپ) واچوئ، یا سره گړي رومیان لږ پر هگۍ واچوئ، کله چي هگۍ په رومي کي ایږدئ یوه یوه شنه پاڼه هم ورسره کښېږدئ .

شپاړسم : د پودین یا فرینیو د ښکلا له پاره کولای سئ چي د تازه مېوې څخه هم کار واخلئ . مثلاً کله چي مو پودین په غاب کي چپه واوډئ پر سر یې د کېلې الغې یا د مالتې ډېري ورواوډئ، که د انگورو موسم وي، سره کشمش یوه یوه دانه د گل په ډول پر واوډئ، که تازه الوبالو وي، هغه پر واوډئ، که تازه الوبالو نه وي وچ الوبالو خیشته کړئ او یوه یوه دانه یې پر سر واوډئ . ډېر ښه معلومېږي .

✿ نوبل جایزه ورونکی بنګالی لیکوال رابندرنات ټیګور

✿ ژباړه اریا




## لنډه کیسه !



چي ماښام را نژدې سو نو توپان هم په پوره زور کي سو ، تېز باران اوربدی ، او تالنده هم داسي په غيظ او غضب سره دربېدله لکه په اسمان کي چي د شيطانانو او دېوتاوو تر منځ جنګ روان وي ، توره وريځ د قيامت د بيرغونو غوندي دلته هلته ګرځېده ، د ګنګا څپو څپيړي غورځولې ، د رود د غاړي په باغونو کي چي کومي درختي ولاړي وې هغه هم د باد له زوره له مستی څخه په نڅا وې .

يوه ښځه او مېړه د خپل اميرانه کور په يوه کوټه کي چي د "چندر نګر" رود پر غاړه پروت دی ، ناست وو ، کور ته د بيرته تلو په اړه جدي بحث شروع و ، ښځه په کور کي ډېره ناروغه وه ، ځکه نو د هغې مېړه چي نوم يې شارت و ، هغه د تبديل هوا په خاطر د رود غاړي ته راوستلې وه ، د هغه ښځه "مسمات کيرن" له دې تبديل هوا څخه ښه شوې وه ، خو د رود د غاړي په دې ښايسته کور کي د کيرن لپاره ټولنه او د تفريح سامان نه و ، ټوله ورځ يې د درمل او ډوډۍ خوړلو پر ته بل هيڅ کار نه و ، او له همدې څخه هغه زړه تنګې سوې وه ، د کيرن ډېر زړه کېدی چي بېرته کور ته لاړه سي او د خپلو ګاونډيانو په خوندور باندار کي وخت تېر کړي ، خو د هغې د مېړه دا رايه وه چي تر هغو چي د هغې صحت او قوت په پوره ډول نه وي ښه سوي ، تر هغو يو څه وخت نور هم دلته پاته سي .

هغوی يو او بل ته داسي ويل :

"چي يو څو ورځي نوري پاته سو نو ته به بيخي جوړه سې"

"زه بيخي جوړه يم ، نور زه غواړم چي بېرته ولاړه سم"

هغه خلک چي ودونه يې کړي ، ښه پوهيږي ، دغه خبري چي دلته لنډې ليکل سوي ، هغه دومره لنډې نه وې ، موضوع داسي نه وه چي دومره اوږده سوې واى ، خو بيا هم خبره لږ روښانه سوه ، په پاى کي چي کله د کيرن په ستر ګو کي اوښکي ودرېدې نو شارت وويل :

"زه خو پر بېرته تلو کومه نيوکه نه لرم ، خو ډاکټر وايي چي يو څو ورځي نور پاته کېدل ضروري دي " .

"ډاکټر خو د خپل فيس لپاره داسي وايي " .

"دا خبره نه ده ، په اصل کي په دې شپو کي په کليو کي ډېري ناجوړۍ خپرېږي ، ځکه نو هغه دا رايه درکړې ، چي دوې مياشتي دلته پاته سه " .

"شرط چي په دې ورځو کي په ښار کي هيڅ ناجوړي نه وي " .

دلته د تېر په اړه څه ليکل بېځايه نه دي ، کيرن د هغوی د کور د ټولو افرادو ، د کلي د ښځو ان چي د هغې د خواښي تر ستر ګو لا ښه ايسېده ، همدا وجه وه چي کله به کيرن ناجوړه وه نو هغه به ډېر فکرمند و ، ډاکټر د تبديل هوا مشوره ورکړه نو شارت په هغه وخت تيار سو ، خواښي يې هم هيڅ ممانعت ونه کړ بلکي د ضرورت لپاره يې خپله لا تياري وښود .

شارت له خپلي ښځي سره ښار ته راغلی او په هغه کور کي يې واړول چي باغچه يې درلوده او د رود پر غاړه

و . د ډاکټر له دوا سره هغه ښه سوې وه . يوه کمزوري يې لا لږ پاته وه .

کيرن چې تر څو خپل خاوند ته ځواب ورکاوه تر هغو پوري بحث روان و . کله چې کيرن چوپه سوه او له خپل خاوند څخه يې مخ واړاوه . دلته نو شارت خپله ماته ومنله .

په همدې وخت کې نوکر يو پيغام راوړی . له هغه څخه شارت پوه سو چې په سيند کې د توپان له امله يوه بېړۍ اوښتې ده . يو ځوان برهمن* هلک چې په دې بېړۍ کې سپور و . هغه په لامبو په بريالیتوب سره د دې باغ تر زينو پوري ځان رارسولی و .

د هلک په راتلو سره هغه خوشحاله سو او له هغه سره يې له ميني ډک چلند وکړ . د هلک وېښتان اوږده او توني ، توني و . سترګي يې غټې ، غټې او ښايستې وې . خو پر مخ يې د بېړي هيڅ اثار نه وو . کيرن هغه ته شيدې ورکړې او له هغه څخه يې ټول حال وپوښتی . چې نوم دې څه دی؟ د سيند له لاري چيري روان وې؟ څه کار کوې؟ او داسي نوري پوښتني يې ورڅخه وکړې . هلک وويل :

"نوم مي نيل کنټ دی . د يوه تياتر په کمپنۍ کي کار کوم . کله چې موږ له رود څخه اوښتو نو توپان موږ لاندي کړو . او زه په ډېر مشکل سره په لامبو ورڅخه ووتم . زما د ملګرو خدای خبر څه حال وي" .

د دې هلک په راتګ او له دوی سره په اوسېدو ټول خوښ وو . کيرن له هغه سره ځکه همدردي لرله چې هغه په مشکل سره ژوندی پاته سوی و . شارت د هغه په راتلو ځکه خوښ و چې د هغه په زړه پوري مجلس د هغه ښځه دې ته هڅوله چې يو څه وخت نور هم دلته پاته سي . د شارت مور بيا په هغه د دې لپاره خوشاله وه چې له دې برهمن هلک سره به نېکي وکولای سي . نيل کنټ هم خوشحاله و ځکه يو خو له مرګه پاته سوی و . بل له خپل زاړه مالک څخه ژغورل سوی و او د يو شتمن په کور کي يې د اوسېدو ځای پيدا کړی و .

خو ډېر لږ وخت ورسته د شارت او د هغه د مور رايه بدله سوه . او هغوی وغوښتل چې نيل کنټ په يو ډول له دې ځای څخه ولاړ سي . سوب يې دا و چې د کور غړو هغه ته هيڅ ويلای نسو چې له امله يې د هلک عادت ډېر خراب کړ . هغه به په پټه . پټه د شارت چلم څکاوه . کله به يې د هغه ورېښمن سايه وان واخيست چې باران به و د کلي په منظره به ووت . او له هر چا سره چې په مخامخ سو نو هغه به يې ملګری کړی و . سربېره پر دې هغه يو سپی هم پيدا کړی و چې پر هغه ډېر ګران و . سپی به له خټو ککړي پښې دننه راتلی او د شارت پر بستره به کښېناستی . يوازي دا هم نه . نيل کنټ د هلکانو ټولي جوړه کړه چې هر ډول او د هر سين هلکان پکښې وو . د دې ټولی د کارونو نتيجه دا سوه چې په هغه کال هلته يو آم هم تر پخېدو پاته نسو .

لنډه داچې د نيل کنټ چې څه زړه غوښتل هغه يې کول . په دې کي شک نسته چې د هغه په بې لاري کېدو کي د کيرن لاس و . شارت به ډېر وخت خپله ښځه له داسي کولو څخه منع کول خو هغې سر نه ګرځاوه . بلکي د نوو جامو په وراغوستو هغې نيل کنټ ډېر شوقي کړی و . دا چې د کيرن له هغه سره رغبت و ځکه نو هغې هغه په وار ، وار خپلي کوټې ته ورغوښتی . د لمبېدو او د غرمې د ډوډۍ ورسته چې به هغې پانډان* راواخيست او پر کټ به پر بوته نو نوکري به د هغې په وېښتانو کي ګوتي وهلې او نيل کنټ به مخامخ ورته ودرېدی او په پوره تکبر سره به يې سندره ورته ويل . د شارت دا نه خوښېدل . هغه به اکثره وخت نيل کنټ ته د غوږ پېچ ورکاوه خو نيل کنټ د دې وهلو ټکولو څنداني پروا نه کوله . ځکه چې دا د هغې سزا په پرتله ډېره کمه وه چې پر هغه د خپل تېر ژوند له تجربو راغلې وه . بالآخير هغه هلته ښه جسماني وده وکړه .

د نيل کنټ له راتلو لږ وخت وروسته د شارت کوچنی ورور شايس د خپل پوهنتون څخه د رخصتيو تېرولو لپاره کور ته راغی . کيرن د هغه له ناستي پاستي څخه بې اندازې خوشحاله وه ځکه چې هغه ډېر ساعتېری او د هغې هم سينه و . هغوی خپل وخت په خوشحالۍ . لوبو . جګړو ، پخلاينو . خندا او ژړا تېراوه . هغوی ټوکي هم کولې او په عجيبو او نوو ډولونو يې يو پر بل مسخرې کولي . په دې شپو کي نيل کنټ داسي بد خونده شو چې هغه خپل ډېر نژدې ملګري او پاللی سپی په وهلو . وهلو پسې واخيستل . د هغه کړه وړه ځکه بدل سول چې کيرن هغه ته هيڅ رخ نه ورکاوه . او هغه په دې عقيده و چې شايس د هغه پر خلاف په شيطانت د کيرن په غوږنو کي ور پو کړي دي او د هغې اړيکي يې له ده سره سړې کړي دي . بس همدا و چې د

*د هندوانو تر ټولو لوړ ذات دی.

*پانډ هغه پانه ده چې د هند په نيمه وچه کي د نشې په دود کار ورڅخه اخيستل کيږي.

هغه د نیل کنټ سره دښمني سوه ، خو په هغه کي دومره جرات نه و چي د خپلي کیني په ډاګه اعلان وکړي ، بیا هم هغه له شایس څخه د بدل اخیستلو لپاره په سلهاوو لاري سنجولې ، د شایس د ځورولو لپاره هغه ډېري لاري عملي کړې . کله چي د کورنی د بېرته تلو وخت راغلی نو کیرن دا وړاندیز وکړ چي نیل کنټ له ځان سره بوزي خو د دې وړاندیز سخت مخالفت وسو او هغې نیل کنټ ته خپل کور ته د تلو وویل ، هغه په چیغو ، چیغو وژړل ، شایس د هغه پر خلاف داسي برغ پورته کړ چي سملاسي له هغوی څخه رخصت سو ، هغه له قهره اور اخیستی و ، او بې مانا چورتونه یې وهل چي په یو ډول شایس ووژني ، خو د هغه له کیني ډک زړه خپلي ویني څښلې .

سایش یو ډول ښایسته رنګ له کلکتې څخه راوړی و ، تصادفاً دغه رنګ د هغوی له تلو یوه ورځ مخکي ورک سو ، سایش له درد څخه وپړسېد ، هغه شکمن و چي رنګ نیل کنټ غلا کړی دی ، هغه نیل کنټ د خپلي ورېنداري په مخ کي راوغوښت او هغه ته یې وویل :

"غلا کړی شی بېرته راکړه"

د نیل کنټ سترګي له قهره څخه سرې سوې ، بیا کیرن هغه یوه طرف ته کړ او له هغه څخه یې وپوښتل :

"ایا رنګ تا غلا کړی دی؟" او هغه ته یې وویل :

" که چیري ته دغه شی په پټه ماته راکړې نو زه به ستا دغه راز پټ وساتم " .

نیل کنټ هیڅ ونه ویل او یوازي په چیغو ، چیغو په ژړا سو ، د کیرن چي پر نیل کنټ باندي د غلا کوم شک و هغه رفعه سو ، خو د شارت او سایش په زړونو کي دا تور هغسي پاته و ، دواړو ورونړو په یوه سلا وویل :

"دا کار د نیل کنټ پرته د بل هیچا نه دی" .

کیرن په احساساتي ډول وویل :

"هیڅکله نه"

شارت نیل کنټ راوغوښت او غوښتل یې چي څیني پوښتني ورڅخه وکړي خو کیرن یې مخه ونیوه :

"نــه ، تــه د غــلا پــه اړه لــه ده څخــه هــیڅ نســې پوښتلای" .

"باید د ده بسته او بکس خلاص او وکتل سي " .

"که داسي وکړې نو زه به ټول عمر له تا سره خبره ونه کړم ، پر بې ګناه باندې داسي شک کول ښه کار نه دی" . له خبرو سره د کیرن تر سترګو اوښکي راغلې او له دې وروسته هیچا نیل کنټ ته هیڅ ونه ویل .

کیرن د هغه پر خبرو له باور کولو څخه داسي سخته منکره وه چي نه یې د هلک یو طرفه شهادت واورېدی او نه یې د هغه د کوټې او بکس تلاشي پرېښووه . د دې بې کوره هلک پر سپکاوي باندي کیرن ډېره وځوربدله ، د هغې نیت و چي دوې جوړې نوي کالي ، یوه جوړه بوټونه او یوه کتابچه د ښېلبدو د سوغات په توګه پرته د هغه له خبرېدو ماښام د هغه په صندوق کي کښېږدي . دغه کار پرته له دې چي د صندق نور شیان راوباسي ، ناشونی و ، اوبل دا هم ضروري و چي هغه شیان له تحفو سره بېرته مناسب ځای کښېږدي ، خو کله چي هغې دغه کار تر سره کاوه نو تصادفا د هغې لاس له ورک شوي رنګ سره ولګیدی ، هغه حیرانه دریانه ولاړه خو ژر یې بېرته رنګ او نور شیان سم کښېښوول ، تر ټولو پر سر یې تحفې کښېښودې او هغه یې قلف کړ ، په دې وخت کي نیل په چوپه کوټې ته دننه راغلی و ، هغه بې له دې چي کیرن خبره سي د کیرن کار ولید ، په دا سبا نیل کنټ داسي ورک سو چي هیچا یې درک ونه لګوی ، په دریمه ورځ پولیسو هم اعلان وکړ چي د هغه هیڅ درک نشته ، له دې سره شارت ته دا چورت ورولوېد چي د هغه صندوق باید وکتل سي .

کیرن وویل :

"دا هیڅکله نسي کیدای" او بیا یې صندوق خپلي کوټې ته یووړی او د شپې په تیاره کي یې رنګ د رود ژورو اوبو ته وغورځاوه .

کیرن د هغه غلا نه کړه برملا ، بیا ټوله کورنی روان سول او په یوه ورځ کي ټوله باغ وېرانه پاته سو ، یوازي د نیل کنټ سپی د رود پر غاړه ګرځېدی او غپل یې ، د هغه له غپا او چیغو څخه داسي معلومېدل چي د هغه زړه مات شوی دی .



## اغېزه ناکه وینا

✿ د ویاند په خبرو کي چي شور او هڅونه، نه وي نور هم نه سي هڅولای.

✿ وینا دنده او مسلک نه دی، بلکي د پرمختګ او مقصد پراو ته د رسېدلو وسیله ده.

✿ ښه خبري کوونکی هغه دی، چي ماغزه راضي کړي، هم یې خبري غوږونه خوښي کړي او هم یې زړه ومني.




۳

ليکوال: محمد حجازي

ژباړن: عبدالقديم پتیال

د لېونيانو غونډي بې له کومې ټاکلي موخي پر لاره تلم، کله تېز، کله کراز تلم، له ليري مي يو موټر وليدی چي ډېر چابک راروان و، ځان مي د سړک منځ ته ور وغورځوی او داسې مي وانګېرل چي موټر راباندي تېر سوی او بدن يې راپرې کړی دی، زرپانه او فريدون به مي پر دغه حال په روغتون کي ويني، په يوه معنی داره نظر به هغو ته ګورم او بيا به روح سپارم، د هغو زړونه په راباندي سوځي موټر مي د موټر چلوونکي له ښکنځلو سره يو ځای تر شا تېر سو او زه له هغه حالت څخه دباندي راووتم

لمر مي تر سترګو بې اغېزه ښکارېدی، نړۍ مي تشه ليدل، هغه ډول چي تصور مي کاوه چي نور د ژوند لپاره هيڅ اړتيا نه لرم، د خلکو راشه درشي ته اريانېدم او د هغو حرکات ساړه او بې معنی راته ايسېدل

دوه ځوانان مي بغل ته تېرېدل او مجلس او خنداوي يې کولې، فکر مي وکړ چي دغه دوه خواران هم يو او بل خوښوي، له دغي تېروتني اغېزمن سوم او چابک د دوی تر منځ تېر سوم، لکه په دې کار چي مي غوښتل د دوی تېروتنه ور اصلاح کړم او دغه درواغجني دوستي مي سره پرې کړې وي. يو خل مي بيا پام سو چي خپلي مغازې ته رسېدلی يم، بدن مي ولړزېدی د زړو خاطرو تر بريد لاندي راغلم، پر سترګو مي توره پرده راغله او ځان مي د يوې هولناکي منظرې په وړاندي وليدی، او له دوکان څخه مي مخ واړوی، او د بازار پر لور رهي سوم، ښځي مي په بد اندازه سره سترګو ته راتلې، ځکه هغه وهمناکي او توري پردې مي شيطاني تصور کولې، چي بېچاره انسان په جادويي کتلو تسخيروي او بيا يې مرګوني ځاه ته ورکشوي، هغو ته له نږدې کېدلو مي پرهېز کاوه

يو لوړ قامته صاحبمنصب مي تر څنګ تېر سو چي ډېر فريدون ته ورته و، فکر مي بدل سو او خپله ښځه مي د هغه وړ وبلله، خيال مي سو چي د دغو دېبانو چي د نارينه وو په جامه کي راغلي دي د بد رنګيو سزا بېله نقابدارو شيطانانو بل څوک نه سي ورکولای.

پر همدغه بنسټ مي نر او ښځي ته په خيالي ډول ويل

ولاړ سی او تلوار وکړئ، پټ خوند او فساد درته منتظر دی، ولاړ سی او هر څونه چي ژر کیږي یو او بل سره بدبخته کړئ!

بېگناه خوند یعني پوره مینه د بشر په برخه نه ده. په هغه کار کي چي گناه، رنځ اوبدبختي نه وي د لېوني انسان د ناروغي اروا خوښي نه سي تر لاسه کولای. په هغه وخت کي مي د زړه له تله توله بدبخته گڼل، د ټلیفون لینونه مي تمېرل او د هغو له ډېرښت څخه خوښېدلم، هغه مي د بشر د بدبختی او جرم شریک گڼل.

اروېدل مي چي زرپانه او فریدونه یو تر بله سره وایي:

سبا پر لس بجې چي اجمل له کوره ووتی لکه مرغۍ چي له کپسه وتښتي، داسي الوزو او یو د بل په غېږ کي لوېږو

گامونه مي چابک کړل او تر بازاره ورسېدم او یوه توپانچه مي رانیوله



د وژلو خیال مي په ټول ژوند نه و کړی له یوې مرغۍ څخه چي به یې سر پرې کاوه ما نه سوای ورته کتلای، د ښوونځي له ملگرو څخه چي له ښکار سره یې مینه وه، بېزاره وم او تل به مي له هغو سره دعوه وه.

په هیڅ وخت او ځای کي مي وژل لازم نه گڼل، او دا مي گروهه وه چي هر ځای چي قتل سوی وي، هلته عقل او منطق مغلوبه او وحشت او حیوانیت غالب دی، هغه چي بازار ته ولاړی او توپانچه یې رانیول، زه نه وم بلکي هغه زما حیوان وجود و.

نابېره په جیب کي د توپانچې دروندوالي پر هوښ کړم، تکان مي وخوړی او لکه له خوبه چي راویښ سوی یم په خپله موخه وپوهېدم، پوه سوم چي چیري ځم او څه غواړم تر سره یې کړم، توپانچې ته مي لاس ور ووړ او د اوسپني له یخوالي څخه بل ډول سوم، اعصاب مي سست سول، یخي خولې مي پر بدن را ماتي سوې زړه مي غورځېدی، په عاجزي او زاریو مي تلونکو ته کتل او اوښکي مي بهېدلې

غوښتل مي چي توپانچه راڅخه واخلي او د زړه په درد مي خبر سي، پر خوارځواکۍ مي وژاړي، غوښتل مي چي زرپانه لکه لومړی ځل چي وه بیرته راکړي، د فریدون ککړه اروا بیرته د پخوا په شان پاکه کړي، غوښتنه مي وه چي له سره مي د سهار د مجلس بې خونده خاطره وباسي او هغه خونړۍ پاڼه مي د حافظې له کتابچې څخه بېله کړي، د نن روځي برخه مي د ژوند له طومار څخه ایسته کړي او بیا وعظ او نصیحت ورته وکړم، په دې شرط چي د نصیحت کولو ځواک راکړي ... نه پوهېږم داسي کار وکړي چي له زړه څخه مي دغه پرېشاني او غم لري کړي، زما دغي اروا ته چي د یوه سوځلي گل په شان مړاوې سوې ده، بیرته تازه والی وروبخښي، که له دغو ټولو څخه یو هم شونی نه دی نو اروا دي راڅخه واخلي او له دغي بلا دي مي خلاص کړي. آخر زه هم له خپل هم مثله څخه مرسته غواړم، وایي چي موږ "اعضائی یک پیکریم" نو ولي زما له درده څوک نه دردېږي ... آه چي دغه خلک څونه بې رحمه دي څونه سخت زړونه یې دي، هیڅوک مي په کیسه کي نه دی، ماته گوري خو وینـــي مـــي نـــه او ټـــول فکـــر یې خپل ځان ته دی، داسي ښکاري چي وجود مي هیڅ ارزښت نه لري.

ومي لیدل چي په ځنگله کي یم چي ما غوندي د حیواناتو ډله خو له احساساتو او عاطفې څخه خالي په ښور کي ده.

ځان خوار او یوازي راته وایسېدی، غوښتل مي چي ناري ووهم، نږدې و چي لېونی سم.

آیا کله مو غوښتي دي چي د آرامو او چوپو ځېرو شاته چي ستاسو له لور سره تیرېږي، د خاطرو زوږ او توپانووینئ؟

ایا کله مو هغو خلکو ته په ډېر ژور نظر کتلي چي په ښکاره سرشاره، ښکلي او د بخت څښتنان دي؟

که د ځان غوښتني حس مو له گرېوانه لاس اخیستلای او اجازه یې راکولای چي د نورو په دردونو خبر سو، نو خپل رنځ مو هېرېدی، خپله خواري مو له یاده وتل او نېکمرغه کېدلو



د فریدون تر کوره څو گامه لاره پاته وه چي له رخشې راکښته سوم او په ټینگو قدمونو یې د کور تر دروازې ولاړم، غوښتل مي چي په داغسي توند ډول کور ته ور ننوزم، خو زړه مي دونه غورځېدی چي نږدې و بېهوښه سم، سر مي سره گرځېدی.

توپانچه مي په ډېر زحمت له جیبه راوایستل او له خپل نارینه توب څخه مي همت وغوښتی او په ځینو کي لوړ ور وختم. حسن نوکر له پخلنځي څخه راووتی او ویل یې ښاغلی (فریدون) وتلی دی، مازیگر نږدې کېدونکی و او پوره باور می و چي فریدون کور دی خو له ما څخه یې پټوي، بېله دې چي څه ووایم له ځینو راکښته سوم

او دننه کور ته ننوتم او دخوب د کوټې پر لور رهي سوم

د دې لپاره چې ډېر ژر خپل هدف ته ورسېږم په باغچه کې رهي سوم، سر مي کښته ځړولی و او شاوخوا مي نه کتل، له باغچې څخه چې راووتم د فریدون د مور ږغ مي واورېدی چې ویل یې

ښاغلی اجمل جانه ! گلان دي تر پښو لاندي پایمال کړل، دا گلان زما په روح پوري تړلي دي

د رسا (د فریدون مور) له همېشنیو او له محبته ډک کتلو له خاطره مي حال بل ډول سو په یاد مي سوه چې هغې ماته په زوی ویل او ما هغې ته په مورجاني ویل

هغه ټولي خاطري مي رایادي سوې، نه پوهېږم چې څه مي خنې وپوښتل چې هغې راته وویل چې فریدون تر اوسه نه دی راغلی، زیاته یې کړه، ولي داسي وسواسي یې؟ یو څه پېښ سوي دي؟ آیا په فریدون یو څه سویدي؟ ستا دي په خدای ﷻ قسم وي راته ووایه ! له هري کلمې سره یې آواز نور هم لوړېدی او سترگي یې لندې وې

غوښتل مي چې خواب ورکړم خو ستوني مي دونه بند سو چې که مي یوه خبره هم کولای، اوښکي به مي له سترگو بهېدلي وای، په لاس مي څو اشارې ورته وکړې او په تلوار له کوره راووتم

ولاړم چې داسي نه وي فریدون راورسیږي، په وینو لړلی بدن مي یې انځور کړ چې مور خپلي غېږي ته ور کش کړ

وتښتېدم ـ هر څونه چې مي وس و، چابک ـ چابک گامونه مي پورته کول، ځغستل مي له ښاره ووتم او د یوه لبرېز لوښي غوندي مي له سترگو او بدن څخه اوبه څڅېدلې. د سارا پر لور ولاړم، هیڅ فکر مي نه کاوه، یوازي دونه پوهېدم چې زړه مي له هري هیلي پرې سوی دی، خوار او بې پناه وم، په ژړا او زاریو سوم، په یاد مي نه دي چې څه مي ویل او له څه څخه مي شکایت کاوه، نه پوهېږم چې دغه حالت څو ساعته اوږد سو؟ په ډېري بې وسی پر ډبره لوېدلی وم، کرار ـ کرار مي د خیال ټوټې سره یو ځای سوې او په یاد مي سوه چې څه راباندي راغلي دي؟

په خپل حالت پوه سوم او پر ځان مي زړه سوځی

د ژوند ډېري سختی او مشهور غمونه مي په ذهن کي تصور کړل، ناپلیون مي ولیدی چې د دنیا له سلطنت څخه لاس پر سر سوی دی، زندان ته ځي او خاندي، خو کله چې ښځه او ماشوم له لاسه ځني کشوي نو زړه یې ماتیږي او ژاړي

د رومي سزار کیسه مي فکر ته راغله چې د هغه چا په لاس ووژل سو، چې ده ته یې په زوی ویلي وه او په خپل کور کي یې لوی کړی و، کله چې یې د بروتوس خنجر پر خپل سر ولیدی، نو ورته ویې ویل: بروتوس ! په هغه حال کي به پر هغه څه تېر سوي وي او کومو خاطرو به یې په ذهن کي تگ راتگ کړی وي. هغه څه چې مي لیدلي او اورېدلي ول، په ذهن کي راوستل او ځان مي د بېوزلو په کتار کي دراوه، خو له درد څخه مي هیڅ هم نه کمېدل

روح خلاصېدله، لمر په ځیري ـ ځیري خونړي کفن کي پېچل سوی و او راته ویل یې چې "زه هم خوار یم، لومړی مي مخ شین و، اوس ژړ سوی دی او پسي توریږي " زه هم د طبیعت د قانون بندي یم، دغه جذبه چي اوس زما او عاشقانو تر منځ ده، ښایي ډېر ژر له منځه ولاړه سي، زما د وجود دغه ذرې چې نن روح یو تر بله سره مینني دي او یو له بله سره راگرځي ښایي یو تر بله سره بېلي سي، هر څه چې سره تړلي دي، له ناچارۍ څخه باید سره بېل سي، مگر عشق تلپاتی دی او هیڅکله له منځه نه ځي، هو ! دونه خبره ده چې هر چیري چې د معشوق جذبه ځواکمنه وي، پر هغه لور مخ ور اړوي. دنیا جمع او تفریق ده لکه دوستي او بېلتون

له ځان سره مي وویل :

نو د زړپانې څه گناه ده، فریدون ولي گناهکار وبولم، مگر هغه د دغه عالم غړی نه دی، هغه کولای سي چې د طبیعت له قانون څخه سر وپېچي؟ هغه ځواک او جذابیت چې زما په وجود کي و او زړپانه مي په رانښکېله کړې وه، هغه اوس کمزوری سوی دی، د فریدون جاذبه اوس تر ما ډېره ده او خوارکۍ زړپانه یې بې له خپلي ارادې پر خپل لور کش کړې ده.

اوسېنه چې د دوو مقناطیسو په منځ کي وي، نو هره خوا چې ځواکمنه وي پر هر هغه لور ځي او هیڅ گناه نه لري

کېدای سي دا به زما نیمگړتیا وي، چې فریدون ته مي د خپل کور لاره خلاصه کړه او زړپانه مي په خطر کي واچوله. دوست باید ونه ازمېیل سي او له طبیعت سره باید لوبي ونه سي، انسان کم ځواکی او بې وسه دی، د نړۍ په وړاندي بې اختیاره او مجبور دی. خواشینی سوم او له دغې بې احتیاطۍ څخه مي ځان پړ وباله، مگر زړه مي راته ویل چې مینه چې د پردې تر شا او په بند کي وساتل سي ارزښت نه لري، هغه زنداني مهرباني چې د اسارت په زنځیر تړل سوې وي، د غوښتلو نه ده.

فریدون او زرپانه مي یو د بل په غېږ کي لیدل او پر یوه مي هم نیوکه نه درلوده د دوارو له دوستی او کیني څخه خلاص وم او نور مي د ژوند کولو لپاره هیڅ دلیل نه درلود، توپانچه مي د زړه پر سر کېښښوول او پر ماشه مي زور راوستی، داسي مي حس کړه چي مرمه، زرپانه مي ولیدل چي ما یه دغه حال کي وینی او زړه یې راباندي سوځي پر ماشه چي مي هر څونه گوته کېښکښل تېک یې نه کاوه، هر څه چي مي وکړه خو بیا هم نه کېدل، داسي و لکه هغه بې روحه جسد چي هم پوهېږي چي باید آزار مي کړي، له درده مي توپانچه پر مځکه وغورځوله چي تابېره تېوله خالي سوه

د مرمی. زغ تېوله فضا پر سر واخیستته، او زه اریان وم، کله چي لږ څه پر هوښ راغلم نو فکر مي بدلون موندلی و، هوډ مي وکړ چي وړاندي تر دې چي ځان د ژوند له رنځه خلاص کړم خپل ټول شتته وویشم، په همدغه هوډ له ځایه راپورته سوم او را رهي سوم، فکر مي و چي یوه کمه برخه یې د تجارتخانې پر غړو وویشم او پاته خپل ورور حسین ته چي د دغي تجارتخانې مدیر و وبخښم، خو زرپانه مي تل په فکر کي وه او هیڅ یې نه پرېښودلم، ویل یې هر څه چي لرې هغه زما مال دی، آیا هغه ټولي ژمني او پرېکړي دي هېري کړې؟

په کوم جرئت ځان د اختیار خاوند بولې؟ آیا هېر سوي دي دي چي زر ځله به دي ویله ځان او مال ټوله په یوه اشاره تر تا ځاروم؟ په دې کي هیڅ شرط نه ځایېږي اوس یې وخت رارسېدلی دی ژر رکوه! خپل ټول شتته دي تر ما قربان کړه او ځان دي هم راکړه، هیڅ عذر نه منم او بهانه هم مه کوه!

په یاد مي سوه چي یوه روځ مي د خپلي میني ترگندوه کوله، راته ویې ویل دغه ټول څه چي وایې د ماشومانو دي، درواغ نه وایې، فکر دي دی چي تل به ذي همدغه ډول احساسات وي، مگر تېر وتلی یې، که مي مازي خپلي غوښتني ستا له خوښي مخالفي سوې، دغه خبري به هېري کړې، ډېر چابک تلم او له دغو مزاحمو فکرونو سره په جگړه وم

کله چي مي ځان په ښار کي ولیدی خپل مال او ځان مي هېر کړل او له دې تصور څخه چي کور به مي بې زرپانې وي، له هر گام سره مي نفس پرې کېدی

اروا مي تر وجود راوتله، کرار کرا مړ کېدلم، کاشکي چي مړ سوی وای د کور د هري گوښې یاد مي بدن پر لوړه راوستی، هغه ښکلي مېزونه او ظریف شیان چي په ډېر ښه ذوق او سلیقه اوډل سوي ول، د ځان په وړاندي مي وهمناکه ګڼل چي اوس مخامخ راته ولاړ دي

زه د هغه کور پر هر شي، آن پر یوه گل او پاڼي هم مین وم، په هر شي کي چي د میني اغېز و، زما له اروا سره یې تړاو درلودی

عجیبه دا ده چي له هغه دونه استعداد سره ـ سره چي د پیسو په ټولولو کي مي درلودی، بیا مي هم هیڅکله زړه په مال او پیسو کي نه بندېدی، بلکي د خپلي هڅي او ځیراکت له پایلي څخه مي خوند اخیستی

تر کله چي مي له زرپانې سره واده نه و کړی، د پیسو په خرڅولو نه پوهېدم او له هغو ډېرو گټو سره ـ سره مي بیا هم ساده ژوند بدلون نه وکړی، یوازي له دغي خوا خوشحاله وم چي هر کتاب مي زړه غوښتی، رانیولای مي سوای هغه روځ چي د میني په کور کي ومنل سوم، نو پوه سوم چي سره او سپین زر د معبود په پښو کي د قربانولو لپاره، تر هغه وروسته مي له خپلو شتو څخه گټه اخیستل، هر یو تومان د زرپانې په خوښه او غوښتنه په لگښت رسېدی، دا زما لپاره دونه خوند و چي هر څونه پیسو له هغه سره سیالي نه سوای کولای

زه د کور پر لوی او کوچني شي مین وم، پر هر هغه شي چي د زرپانې نظر لوېدلی او له ځان سره یې بوخته کړې وي، زما د میني له غړو څخه شمېرل کېدل

هغه کور زما "نگارخانه" وه چي هر ځای مي د خپل معشوق انځورونه پکښې لیدل، له هغه خواشیني څخه مي داسي په نظر راتله چي له هر ځای څخه د زرپانې صورت محوه سوی دی، د هغې اروا له هغه کوره تښتېدلې ده، ټوله شیان د جسدونو په څېر بې روحه، ساړه او وحشتناکه دي، ښایي په مړوستر گو راته وگوري، له دغسي حالته ډارېدم او لړزېدمه، لکه ټول بدن چي مي ژوبل وي، له هر ډول حرکت څخه اغېزمن کېدلم

ځان ته مي ډاډ ورکوی چي ښایي دغه څو دقیقې زحمت وزغمل سي، کور ته په مازي رسېدو سره خپل وصیت لیکم او خپل ورور ته یې ورلېږم او ځان پر هغه چیرکټ چي یو وخت زموږ د میني کور و، وژنم...

د هغو څو دقیقو زحمت زغمل راته ستونزمن و، کله پوهېدلم چي دغه بدمرغه وجود به د روځو ـ روځو او میاشتو ـ میاشتو او آن کلونو ـ کلونو د سخت ترین عذاب وړ وگرځي



چابک مي ګامونه راواخيستل چي هسي نه هوډ مي کمزوری سي، په خپل ټول ځواک سره مي هر بل فکر له ځانه ليري کاوه، تر څو کور ته ورسېدم، بېله دې چي ور وټکوم دروازه خلاصه سوه، اسمعيل نوکر د دروازې شاته و، ويې پوښتلم: ښاغلي په دا شپه چيري واست؟ بدن دي ولي په وينو دی؟ کالي دي هم خړ پړ سوي دي، خدای ﷻ دي نه کړي چي د غلو په لاس ورغلي واست، خدای ﷻ رحم درباندي کړی دی.

د اسمعيل دغو پوښتنو ته مي په زړه ځوابونه ويل چي هغه نه اروېدل، بيا يې ويل:

برابي يو نفر زموږ په کوڅه کي ځان ژوبل کړی و، زه د کور په سر کي بې حرکته ولاړ وم، او په ځير مي هغه ته کتل، د پورته ختلو توان مي نه درلودی، ښايي اسمعيل به فکر کړی و چي لېونی سوی يم، تر لاس يې ونيولم او ويل يې:

ولي پورته خېژې؟ مېرمن تر اوسه نه ده بيده سوې، تاسو ته منتظره ده، د دغه خبري په اروېدو مي زړه ورېږدېدی که اسمعيل مرسته نه وای راسره کړې، نه مي سوای کولای چي په ځينو کي وخېژم.

اقرار کوم چي دغه حالت له شوقه و، مست او خوشحاله سوم، تېر حالت مي له نظره ليري او محوه سو. باور مي راغلی چي تېروتنه نه ده سوې، فريدون رښتيا ويل چي: ما او زما زرپاڼه د ځان په څېر ورباندي ګران يو، او هيڅکله خيانت نه راسره کوي.

پوره لا نه وم ننوتلی چي د خوښۍ هغه حالت لکه برېښنا چي يو څرک ووهي راڅخه تېر سو او ځای يې تيارې او غم ونيوی، کرکي او کينې مي په زړه کي ځای ونيوی، لويي او ځان خوښوني مي د نېکمرغۍ نهال راسوځي، راته ويل يې چي

ستا له ښکلا او شوخۍ سره ـ سره ولي بايد زرپاڼه په بل چا پوري زړه وتړي، څونه لوی جنايت! داسي نه وي چي د هغې ګناه وروبخښې، خلک به څه وايي؟



په هنداره کي مي له ځانه څخه بد راغله، څېره مي په پوره ډول بل شاني سوې وه، ومي ليدل چي ژاړم، پر مخ او سر مي زخمونه ول، چي نه مي په يادېدل کله سوي دي، نه مي غوښتل چي هغه منظره بدله کړم، غوښتل مي چي زرپاڼه مي په هغه حالت کي ووينې تر څو يې زما تر مرګ وروسته زړه راباندي وسوځي.

د خوب د کوټې پر لور ولاړم، او لاس مي پر دستګير کښېښود، خو د پېچلو توان مي نه درلودی، د دې لپاره چي ځان مي ځواکمن کړی وي د قهر او غوسې حالت مي خپل کړ، او په هغه ډول خوني ته ورننوتم.

څراغونه لګېدل، زرپاڼې هغه انګيا چي يوه روغ وړاندي مي ورته راوړې وه، اغوستې وه. د سيني او بازوګانو سپينوالي يې لکه د سهار سپېدو له چا څخه زړه وړی

پر يوه اړخ پر چپرکټ پرته وه، او يوه پښه يې تر روجايي راوتلې وه، هغه پښه چي ما به تل پر خپلو سترګو ايښوول، زما يو عکس چي په نقره يې غاب کي نيول سوی و، زما پر بالښت ايښی و اويو لاس يې پر راګرځولی و، پرېشانو زلفو يې هر لور ته څپې وهلې، هيڅکله مي زرپاڼه په دونه ښکلي انداز نه وه ليدلې، وېرېدم او زړه مي تر ټلو شوه سو

نه پوهېږم چي بيده وه که ويښه، خو سترګي يې پټې وې.

وړاندي نه ولاړم او ودرېدم، ليدل مي چي د ژوند موخه يعني مينه اوهيله يو ګام راڅخه ليري ده، که لاس ور اوږد کړم، ور رسېږم، په زړه کي مي ژړله چي اې خدايه! د عشق د دښمنانو څنځير مي له غاړي څخه ايسته که، او د ميني اور مي راولګوې، مکړې چي د کينې، لويي او کرکي ږغ مي تر غوږه راورسيږي، لويه خدايه! غيرت او شرافت او نور هر څه چي لرم راڅخه وايې خلې، او يوازي مينه راپرېږدې، اې لويه خدايه! پرې مي ږده چي يوازي د زرپاڼې مين واوسم، نور شی نه درڅخه غواړم. په دغه وخت کي زرپاڼې يو حرکت وکړ، او ځان يې زما پر انځور واچوی، بې اختياره سوم او ورغلم چي په پښو کي يې ور ولوېږم، ورته ووايم چي زما معبوده! هر څه چي غواړې ويې کړه، خو په دې شرط چي ما پرېږدې چي ستا عاشق و اوسم، بله غوښتنه نه لرم.

سترګي يې روڼې کړې او په ساده او ساړه انداز يې وويل:

اجمله! څونه ناوخته راغلې؟ ولاړ سه ځان دي پرېوله او بيا بيده سه. ځواب مي ور نه کړ اودا هم ببله دې چي څه ووايي بيده سوه. لومړی مي دا فکر وکړ چي زرپاڼه له ميراث څخه بې برخي کړم، مګر ومي ليدل چي استرې تسلي مي دا ده چي زما تر مرګ وروسته د زرپاڼې زړه تل سوځي او ښايي يوه روغ پښېمانه او شرمنده سي، ومي ليکل

زما بې وفا زرپاڼې ! زه ولاړم، که ستا آرام زما په نه موجودیت کې وي نو دا دی نېست سوم، ستا له مینې سره له دې نړۍ څخه ځم.

د هغو ښو روځو په یاد، هغه ټوله مینه او محبت، هغه روحاني شېبې او هغه آسماني خوندونه چې تا راباندې وچښل، د ژمني ماتول تاته دربخښم، او د ژوند په دې وروستیو شېبو کې له لوی خدایه ﷻ غوښتنه کوم چې تا وبخښي، ځکه چې په دغه یوه روځ کې ما بې اندازې رنځ وګالی او ښایي لوی خدای ﷻ مې خواست قبول کاندي.

په هغه دنیا کې به درته سترګې پر لاره یم، راسه چې هلته یو ځای واوسو، هلته یو مخ مینه او وفا ده، خیانت او بې وفایي نسته.

ټوله شتمني تاته دربخښم، که دې غوښتل چې دېرش زره تومانه مې حسین ورور او لس زره د تجارتخانې غړو ته ورکړې، نو اجمل دې تر تا قربان سي، زړه مې غوښتل چې تر مرګ وړاندې ووینم چې د لیک په لوستلو پر زرپاڼې څه حالت راځي، انتظار مې درلودی چې له دروازې څخه راسي او دا لیک ولولي.

قلم مې پر مېز کېښښووی او توپانچه مې وازمېیل چې بیا د تېر په څېر کومه اړې ونکړي، ور پرانیستل سو او زرپاڼه له خندا ډکه خوله راننوتل او په غاړه کې مې راولوېدل، ویل اجمل جانه ! لومړی باید ما ووژني او وروسته خپل ځان، آیا تا خیال درلودی چې ما یوازې پرېږدې او خپله ولاړ سې؟

هر څه چې مې هڅه کوله چې ځان ځنې خلاص کړم، خو نه یې پرېښوولم، په هغه تېل ماتېل کې مې توپانچه پر غوږ برابره کړه او په پښه مې فشار پر راوور، د مرمیو ړغونه اوچت سول او زه بې هوښه سوم.

یو څل مې پام سو چې زرپاڼې په څنګ کې نیولی یم او کراړ ـ کراړ وایي: زما بې ګناه اجمل جانه ! زما بدبخت اجمله ! خدای ﷻ راباندې مهربانه سو، زما پر حال یې زړه وسوځی خو زه بده یم، زما پر دې ککړ طبیعت دې لعنت وي، اجمل جانه ! زه تر تا بدبخته یم، ولې دې زه نه کړم مړه، زه تر هر چا بدبخته یم، په زړه مې نه یې خبر !

پوه سوم چې تر اوسه لا نه یم مړ سوی، او دغه خبري اروم.

زرپاڼې ژړله، ورته ومې ویل مه ژاړه، څه نه دې پېښ سوي، مګر ولې دې نه پرېښودلم چې ځان مړ کړم؟ ولې دې لاس راونیوی؟ زه یې روان کړم او د خوب کوټې ته یې بوتلم او پر چپرکټ یې کېښښولم، وروسته له هغه چې یو څه وخت یې راته وکتل، تر څنګ مې کېښښستل او زارۍ یې کولې، له سترګو یې د اوښکو سېل روان سو.

❂ ❂ ❂

جسماني سترپاوو او روحي اغیزو مې نفس او غیرت راوژلی و او راباندې غالب سول، له دغې بې حسۍ څخه مې خوند اخیستی، معشوق مې په څنګ کې و او زه په آسمان کې.

په سبا مازیګر وختي راویښ سوم، ومې لیدل چې زرپاڼې نوي کالي اغوستي او سر ته مې ناسته ده، ویل یې اجمل جانه ! در ولاړ سه ! ژر سه باید همدا نن په سفر ولاړ سو، د دې ښکلې زیري په اورېدو مې له اروا څخه تور ځنځیرونه خلاص سول، د درد او رنځ له زندان څخه آزاد سوم، فکر مې وکی چې که یې علاقه نه راسره درلودای له بل چا څخه یې لاس نه اخیستلای او نه یې غوښتلای چې زما سره یوازې واوسي، نو ولې یې دا خبره راته کوله، او وپوهېدم چې تېروتنه نه ده سوې.

ځان مې د هغو بدو تصوراتو له وجې ملامت کړ او د زرپاڼې او فریدون له مخه وشرمېدم، له هرې ساه کښلو سره مې دا پر ژبه راتله چې ځنې وپوښتم چې پرون دې د فریدون په کور کې څه کول؟ بېرېدلم چې هسې نه د خوښې خلاف ځواب درکړل سي ...

ولاړ سوم، کالي مې واغوستل او خوندوره ډوډۍ مې وخوړله، څرګنده سوه چې د سفر ټول شیان چمتو سوي دي او خراسان ته ځو.

زرپاڼه زما له حالت او کتلو څخه پوهېدله چې ډېري پوښتني لرم، ویل یې اجمله جانه ! پوهېږم چې په زړه کې دې ډېري پوښتني شېبې وهي، غواړم چې د پرون کیسه درته وکړم، کله چې په لاره کې یوازې سولو، نو ټوله کیسه به درته وکړم، ټوله حواس به دې آرام سي، ډاډه اوسه !

ما له ځانه سره کرار وویل: نو بیا به ښه وي چې تر تګ وړاندې له فریدون سره خدای پاماني وکړو، زرپاڼې په غمجن ډول موسل او ویې ویل: فریدون باید هېر کړو ... زه چوپ سوم.

زرپاڼې د ملامتۍ په انداز راوکتل او ویل یې اجمل جانه ولې دې حالات بدل سوي دي، ایا زه ستا لپاره بس نه یم؟ زه چې ستا مال یم نو نورو ته څه اړه لرې؟ په غیږ کې مې ونیوله او سر مې د هغې په سینه کې پټ کړ.

د نړۍ له لیدلو ډارېدم، سترګي مي پټي کړې او هغې ته مي پناه یووړه، د زرپاڼي زړه په ډېري توندۍ غورځېدی، خیال مي وکړ چي ښایي زما د عشق له سستۍ څخه بېرېدلې وي، خوشحاله سوم خو کاشکي هغه وخت پوهېدلای چي د هغه زړه غورځېدل د کومو احساساتو له مخي وه؟! که له هغې تیارې څخه مي دونه نوکۍ څرک لیدلی وای ښایي له ژوند څخه نه وای بېزاه سوی له بده مرغه چي دغه ژور او تاریک ځاه ته چي هغه ته زړه ویل کېږي، د سترګو نظر نه رسیږي.

د خراسان پر لور رهي وو، اسمعیل نوکر او ګامن زما وفاداره سپي مو هم د سفر ملګري ول، تر ټولو ښه د آس بګۍ مو کرایه کړې وه، د بګۍ دننه بالښتان کوربچې (تالي) او د خوراک او څښاک ټول شیان برابر ول. زما د ژوند تر ټولو ښه روځ هغه روځ وه، د بګۍ په تنګه هوا کي تېره سوه، یو له بله سره موښتي وو او سره کښېکښېل مو، زرپاڼه زما په غېږه کي بیدېدله لکه دنیا چي یې زما څخه اخیستې او بېرته رابخښلې وي.

د فریدون فکر مي ډېر کله په ذهن کي انقلاب راوستی، خو هر ځل به مي د میني د شور او احساساتو په خاطر ځان حني ژغوری زړه مي غوښتل چي زرپاڼه هم د هغې پېښي په باب څه ونه وایي چي ښایي په پوره ډول هېره سي. په خوشحال ډول مو خپل سفر ته ادامه ورکوله.

مګر څرنګه چي د خپل بخت او د میني د وژلو لومړني دښمنان موږ خپله یو، نو مي خیال سو چي که د پېښي په اړه پوښتنه ونه کړم ښایي پر غیرت او شرافت مي یو داغ ولګیږي وخت مي پیدا کړ او ومي ویل چي کله چي ښه بوازي سولو نو د هغې منحوسي روځي کیسه به راته وکړې او له دغه وژونکي فکره به مي وژغورې، نه پوهېږې چي خیال مي تر څونه درونډ بار لاندي دی؟

زرپاڼي یو لوی آه وکیښ او ویې ویل چي څونه به ښه وای چي هغه کیسه مو هېرولای سوای، بېرېږم که درته ووایم نو ژوند به دي تریخ سي ورته ومي ویل هر څه چي ول ویې وایه.

ویل یې نور څه نه لرم، مګر دوه شرطه لرم، یو دا چي وروسته تر دې به بیا په دې باره کي څه نه وایې، دوهم دا چي هر څه دي واروېدل درد به نه درولې، ورته ومي ویل چي سهي دی، ډېره هڅه به وکړم چي درد رانه سي، ویل یې دریم شرط هم لرم چي زرپاڼه دي تر پخوا لا باید خوښه سي، آیا ژمنه راسره کوې؟

څه ووایم، آیا اجمل کولای سي چي بېله زرپاڼي دي یې بل څوک خوښ وي؟ ویې ویل ستا په شان سپېڅلي خلک په ژوند کي تر یو ځل زیات نه مینېږي مګر څونه خوند اخلي، څه آرام خاطر یې وي، د هغو مینه آسماني ده. زه په دې ټولو شیانو پوهېږم، اجمل جانه! زړه دي باید د هغو پر حال وسوځي چي تل د تشویش او شهوت په دام کي ښکېل وي، هغه زړونه چي د ښکلو ګلانو په څېر وي، تل د اغزیو د جفا له لاسه څیري ـ څیري او ژوبل ـ ژوبل وي، ستا پر حال دي خوښي وي، د هر چا چي ستا غوندي پاک فطرت وی تل به خوښ وي.

په ځان کي وغتېدم او مغرور سوم، خو د زرپاڼي خبري له ځان سره وې خو زما یو لنډکی نظر دهغې د زړه ژورو ته نه سوای ورکښته کېدلای ومي لیدل چي زرپاڼه پوه سوې ده، چي زه تر فریدون ښه یم او زما له ښه والي څخه نرمه سوې ده، دونه خوشحاله سوم چي اندازه یې نه لګیږي.

کله چي عاشق وکولای سي د معشوق په وړاندي د نورو په منځ کي سرلوړی سي، داسي ده لکه د اسارت ځنځیر چي یې له غاړې خلاص کړی وي تر څه راز و نیاز وروسته زرپاڼي وویل.

ټوله ستا ګناه وه چي فریدون دي راسره شناخته کړ، وروسته تر هغه چي کور ته دي راوستی، وپوهېدم چي ستاسي دوستي سره شلیږي، د فریدون له کتلو څخه وپوهېدم چي زما په وړاندي پاک خیال نه لري، زړه مي رېږدېدی ویل مي چي اې خدایه څه به پېښ سي؟ دوه درې ځله مي وغوښتل چي خبره ستا سره شریکه کړم، بیا مي وویل چي ښایي خپله به منصرف سي، تر څو چي یوه روځ یې د میني څرګندونه وکړه، مګر خپله هم خوارکی شرمېدی، څه یې کړي وای د هغه ګناه نه وه، د چا زړه تل په خپل واک کي نه وي ... نړدې و چي روح مي له تنه والوزي، ومي لیدل چي نور د کیسې اروېدلو زغم نه لرم، ورته ومي ویل چي ژر ووایه، نور څه وسول، هغه روځ د څه لپاره د دوی کور ته ولاړې؟

ویې ویل چي هغه روځ تللې وم چي لاسونه یې په پاکو اوبو ورپرېولم او نصیحت ورته وکړم. تر لږ څه فکر کولو وروسته یې بیا وویل.

په هغه روځ زما او د ده تر منځ هر څه پرې سول، یعني فریدون وپوهېدی چي نور تینګار ګټه نه لري، ما داسي څه غوښتل چي ستاسي دوستي پر ځای پاته سي، ته راغلې او زه دي هلته ولیدم، پوهېږې چي پر فریدون څه تېر سول، ډېر

څه نه ول پاته چي لېوني سي، له اضطراب او يا شرمنده گۍ څخه، ستا کاغذ يې نه پرانيستي، غوښتـل مي چي ځني وايې خلم او ويې لولم خو نه يې پرېښوولم، رښتيا په هغه کي څه ليکلي وه؟!

ورته ومي چي له خپلو پيسو څخه مي لس زره تومانه فريدون ته بخښلي دي، رنگ يې سور سو او وروځي يې سره وغوړځولې، ويل اجمله ته ډېر ښه سړى يې، ستا داټولي نيکۍ ما خوروي، زما له دغه ډول نرمو احساساتو څخه بد راځي، ته مي د خپلي ښکلا په خاطر خوښ وې، مگر اوس وينم چي ستا نېکيو زما څخه يوه بندي او بنده جوړه کړې ده او زما له بنده گۍ څخه بده نه راځي

هغه وخت سم نه پوهېدم چي څه يې غوښتل ويې وايي، تر لږې چوپتيا وروسته يې بيا وويـل د فريدون دا خيال و چي تاته راسي او هر څه چي پېښ سوي دي، درته ويې وايي، خو ما نه پرېښـودى، ځکه چي هر څه يې درتـه ويلاى، تاته ورسـره منـل، او ښـايي داسـي څـه دي ورتـه ويلـي واى چـي د هغه له شرافت سره يې ټکر کړى واى، خو خير هر څه په خير تېر سول

ورته ومي ويل چي افسوس کوم چي فريدون مي ولي نه ووژى، په اريانوونکي ډول يې راڅخه وپوښتل چي نو بيا دي فريدون وليدى؟!

تفصيل مي ورته بيان کړ، په نفرت يې راتـه وويـل: ته مي يو انسـان وژونکى نه بللې، کـه دي فريـدون وژلى واى، بيـا بـه مي هيڅکله دوستي نه واى درسره کړې، له انسـان وژونکي سره دوستي نه ده په کار

له فريدون څخه د زرپاڼي ملاتړ مي خاطر را دروند کړ، په غوسه مي ځني وپوښتل چي معلومېږي چي تـه هم لـه هغـه سره بې علاقې نه وې؟ ويل يې: هر څوک چي چاتـه د مينې وړانديز وکړي، د انسـان پـه زړه کـي ځـاى نيسـي، تـا نـه دي اروېدلي چي زړه ـ زړه ته لاره لري، خو اتفاقاً زه لـه فريـدون سره کومه خاصه علاقه نه لرم، زمـا موخـه دا وه چي تـه بايد انسـان وژونکى ونه اوسې، بد کارونه ستا څخه ليري دي

ورتـه ومـي ويـل مگر کلـه چـي مـي خـان وژلاى نـه دي ملامتولم؟!

خواب يې رانکړ او دواړه چپ سولو، له زرپاڼي څخه مي زړه سوړ او ځني ليري سوم چي نور ورسره ونه خورم

يوه روځ په دغه ډول تېره سوه، تللو او لـه خپلو پرېشانو فکرونو او خپلي خوارځواکۍ سره لاس او گرېوان وو، مگر څونه سخت تمامېدل

د کيني اور مي د زرپاڼي او فريدون په خاطر په ذهن کـي بـل و، آرام سـو او پـر ځـاى يـې د غـم تيـاره راغلـه، لـه يوازيتوب څخه مي وحشت وکړ او ومي غوښتل چي زرپاڼي ته پناه يوسم، خو د ځان غوښتني حس مـي مخـه ونيولـه، لمر پر لوېدو و، هغه وخت چي خيالونـه لکـه وحشـي حيوانات لـه غارو راوزي او پر انسان حمله کوي ښايي زرپاڼي مـي حالت حس کړى وي او يا به پخپله هم د غروب له وجي په غم اخته وه، زما سترگو ته يې وکتل، ويې خندل او زه يې هم پر خندا راوستم. يو لـه بلـه مـو پـه غېږ کـي سره ونيـول او لـه ويرژلو خيالونو څخه د يو او بل په سينو کي پټ سولو، او بيـا نـو تر سهاره نه سوو سره بېل. پر دې مو پرېکړه وکړه چي تېر بايـد هېر کړو، ژوند او مينـه مـو لـه سره پيـل کړه او د خوښـۍ پـه شـېبو کـي وو، رښتيـا دا ده چي د دوسـتۍ تړاو تر يـو خنډ وروسته د دوهم ځل لپاره ډېر سره نږدې کيږي، خو هغـه خنډ تل د يو يادگار په څېر پاتيږي



يـو فرسـخ لاره پاتـه وه چـي بايـد ... ورسـيږو. د سـهار جلـوې مـو بـزم را روښانـه کـړ، د طبيعـت سـترگي زمـوږ پـر رنگين محفل وموښتلې او قصد يې راوسـو، ومـي ليـدل چـي بگۍ په غير معمولي ډول ځغلي، داسي تېزه تلله چي نږدې و له اربو وغورځي، په زوره ناره مـي وکړه چـي اسـمعيله دا څـه کـوې؟ آيـا آس لېـوني سـوى دى؟ نـوکر اسـمعيل او سـورچي (آس) دواړه لاندي ولوېدل، بگۍ څو گامـه ولاړه او ودرېده، پـر آسـونو هـم گولـۍ مـوښتي وې او دواړه پـه وينـو کـي ورغړېدل، نابېره مي تر سترگو برېښنا تېره سوه، يوه مرمۍ د بگۍ تر دواړو خواوو ووتل، زرپاڼه په ما پوري موښتې وه، او لړزېدله، سر مي تر دربچه راوايسـتـى ... ومـي ليـدل چـي دوه سارايي کسان چي سرونه يې په سرو دسـملانو تړلي، اوږدې توري رېږي او توپکونه په لاسو کي زموږ پر لور راځغلي، کله چي يې زه وليـدم، گونډې يې کټ کړې او کښېناسـتل، سر مي له دربچې را ايسته کړ او خپل عضلات مي کښېکښل، چي هسـي نه مرمـۍ راپکښـي مـوښتې وي، خـو داسـي نـه وه، رانږدې سول او پـه خاصـه ترکـۍ لهجـه يـې نـارې وهلې چـي راکښته سئ

لېوني غوندي مـي شيان سره غورځول او توپانچـه مـي لټوله، له زرپاڼي مي وپوښتل، ويل يا نه مي ده راوړې

غوښتـل مـي چـي لـه بگـۍ دبانـدي راووزم، نـه يـې پرېښوولم، هر ډول چي و ځان مـي ځني خلاص کړ او لاندي راکښته سوم، غلو تـه مـي وويـل څـه غـواړئ، د څـه لپـاره مـو

بريد راباندي وکړ؟ په ماته او تړلې ترکي يې ښکنځل راته کول او ګواښلم يې، له لهجې څخه يې پوه سوم چې ترکمن دي، په دغه شپېه کي دوه نور کسان د بګۍ له هغه لوري راورسېدل او شاوخوا راباندي راوڅرخېدل، د هري خبري په خواب کي مي يا د توپک کنداغ او يا يو ټينګ سوک خوړی. لاسونه او پښې بې راوتړلې، يوه ويل پرې يې ږده چي نس يې ور څيري کړم، بل يوه په شوخ انداز ويل چي پرې يې ږده په يوه مرمۍ يې کار ور خلاص کړم، تر څو په آرامه مړ سي، بالاخره ټولو وويل چي ټوټه ـ ټوټه کوو يې، تر څو ډېر ثواب ولري.

زرپانه يې نيمژواندې له ګاډي څخه را وايستل يو چي د دا نورو رئيس و او نوم يې سردار و، وويل چي دا ښځه زما مال دی، ما بې اختياره په ښکنځلو خوله ورته خلاصه کړه.

دوه درې سوکان مي پر سر وخوړل او سرسام سوم، زرپانه بې هوښه سوه، فکر مي وکړ چي انشاء الله مړه سوې ده، ځکه چي باور مي درلودی چي د هغو حيواناتو له منګولو ژغورو امکان نه لري.

سامانونه يې له بګۍ څخه را وايستل او د بګۍ پر يو آس يې چي ژوندی و، بار کړل، اسمعيل او هغه بل آس په ډېر شرف سره وژل سوي ول، د زرپاني سترګي روښي سوې او ږغ يې کړ، ورته ومي ويل چي زړه مه بايله، خدای ﷻ لوی خدای ﷻ دی، سردار پر ما خنجر راوکيښ او ويل يې زما له ښځي سره خبري مه کوه، که نه وي زړه دي درڅخه راباسم.

وروستۍ پرېکړه پر دې وسوه، چي ما ووژني، سردار ويل چي زه يې غوږونه ورپرې کوم، بل ويل چي زه يې نس ورڅيرم.

په دغه وخت کي مي له چل څخه کار واخيستی او ورته ومي ويل چي زه ستاسو غوندي اصلاً د اسلامبول د ښار يم، که ما ووژني نو د قيامت په روځ به مو شفاعت نه کيږي، څرنګه چي په ترکي مي خبري کولې او کالي مي ښکاري ول او خولۍ مي د بيمقوا له پوست څخه وه، نو له حيلې څخه مي کار واخيستی، سردار راڅخه وپوښتل چي څه کار کوې؟ ورته ومي ويل چي د فرشونو سوداګر يم او مشهد ته ځم، ما مه وژنئ پيسې به درکړم، ويل يې څونه پيسې لرې؟ هر څه پيسې چي مي درلودې راومي ايستلې تقريباً شپږ سوه تومانه وې، له لاسه يې راڅخه وکښلې او په جيب کي يې واچولې. بل يو چي تر ټولو مشر ښکارېدی يوه چلاخه يې د سردار له خوا وخوړل او په بدیل کي يې زه هم يو کلکه لغته ووهلم، او راته ويې ويل چي دا سپی هم زما بندي دی.

زر تومانه اخلم بيا يې ايله کوم، زما برخه تر ټولو ډېره سوه. مالونه هغه نورو دوو کسانو يووړل

سردار زما ګران سپی "ګامن" په يوه اوږده تناو پر زين وتړی او زرپانه يې پر آس سپره کړه، ماته هغه بل يوه د آس جلو په لاس راکړ او مزل مو پيل کړ. تر نيم فرسخ وروسته هغه نور دوه کسان چي زما مالونه ورسره ول له موږ څخه بېل سول او پر بله لاره ولاړل، هر ځل چي به زه نوکي کرار سوم نو ښکنځل او چلاخه مي خوړله.

څرګنده وه چي سترې مزل مو دی، او پر درو او تپو مو مزل کاوه.

سردار ډېر کله سندري زمزمه کولې او کله ـ کله به يې له سپين ږيري سره مجلس کاوه. سپين ږيري راته ويل که زر تومانه رانکړې، نو دا سپی خپلو زامنو ته ورکوم چي ټوټه ـ ټوټه يې کړي. ورته ومي ويل چي ته لاره هواره کړه چي ليک مي تهران ته ورسيږي، زر تومانه درکوم. په عين حال کي مي سردار ته وويل چي د ښځي لپاره څونه پيسې غواړې؟ وې خندل او ويې ويل چي دا حوره په لس زره تومانه هم نه ورکوم. ورته ومي ويل چي زه پنځلس زره تومانه درکوم د دې خبري له اورېدو سره يې يو مزاحم شک ذهن ته ورولوېدی، او د دې لپاره چي خواب رانه کړي خبره يې پر بله خوا واړوله.

سپين ږيري په ښکنځلو خوله راته خلاصه کړه، ويل يې په پنځلس زره تومانه خو بايد خپل سر هم خرڅ کړې. په دغه وخت کي مي پښه له ډبري سره ومونښتل او پر مځکه ولوېدم، د درد له وجې مي نه سوای کولای ولاړ سم، د سپين ږيري ښکنځلو او ګواښونو کومه اغېزه ونکړه. له آسه راکښته سو او پر سر او بدن يې د چلاخو وارونه راپيل کړل، له دغه خوند مي نفس ختی، درد مي هير سو، ولاړ سوم او سپين ږيری مي څو کلک سوکونه پر دا سر ووهي، سردار خندله او پر سپين ږيري يې ټوکي کولې، سپين ږيري خنجر را وايستی او زما پر لور رارهي سو، زرپانې نارې وهلې، سردار وويل، قليچه څه کوې، غواړې زر تومانه ووژني؟ د سپين ږيري لاس په هوا کي وچ سو.

سردار راکښته سو او زرپانه يې پر مځکه کښېنوله، ويل دا ټوله له چربۍ څخه جوړه سوې، ډېر ژر سترې کيږي، بايد لږ آرام وکړي. په عيني حال کي زرپانې ته ځير سو، ويل قليچه سيل وکړه، سترګي يې څنګه رنګ لري، څونه ښکلي وېښتان يې دي، په ټوله سارا کي بل څوک داسي ښځه نه لري، ستا تر زرو تومانو ډېره ښه ده.

سر یې زرپانې ته ور نږدې کړ چې مچ یې کړي، زه بې واکه سوم او باز غوندې مې حمله پر وکړه، په یوه لاس مې یې خنجر نیولی و، او په بل لاس مې پر سر او پر مخ وهې، دغه جگړې ډېر وخت ونیوی، د قلیچ خنداوو د زرپانې بې وسیو او د سپي خوارخواکۍ زه پاڅولم، خپل زور ته اریان وم خو دا مې حسوله چې خپل ټول توان مې په کار اچولی دی، خو که سپین ږیری د سردار مرستې ته راسي ښایي له پښو به مې وغورځوي، ځان مې وژلی لیدی، په دغه شیبه کې د زرپانې وحشتناک او زړه کښنونکي آواز دواړه هغې خواته متوجه کړو. ویل یې اجمله جانه ! زه یې بوتلم، اې خدایه ﷻ په داد مې ورسېږې.

یو د بل گرېوانونه مو سره ایله کړه، او ومو لیدل قلیچ زرپانه د سردار پر آس کښېنولې او په حرکت کې دی.

د هغه پر لور مې برید وکړ، آس ته یې چلاخه ورسره کړه او ویې خغلوی، گامن (سپی) چې هم ځا له بنده خلاص کړی و، په هغو پسې رهې و، ما د لېونیانو غوندې تر شا پسې خغستل، سردار د قلیچ پر آس سپور سو او باد غوندې تلی، زما ساه بنده ـ بنده کېده، تر څو دقیقو وروسته د یوې تپې شاته زما له نظره ټول ورک سول.

◎ ◎ ◎

د بیابان خاورې مې پر سر بادولې، او نارې مې وهلې، څه ووایم د هغه حالت کیفیت او حال مې له نظره محو سوی دی، فرضاً که اوس په هغه حال کې وای، ایا کولای مې سوای چې د هغې سختۍ لپاره مې تشبیه پیدا کړې وای، چې لوستونکي احساس کړې وای؟

باور لرم چې د حالت له بیانولو څخه نه یوازې خپل هدف ځرگندولای سم، بلکي ښایي پر تاسو یو معکوس اغېز هم وکړي.

که ووایم چې اعصاب یې په امبورانو راخخه کښل، ښایي ستاسو پام جسماني دردونو ته ور واوړي، او خیال به کوي چې درد دونه سخت وي تو څوک مري، بیا نو زه ولې نه یم مړ سوی، ښایي رنځ به مې دونه سخت نه و. مگر اروایي سختۍ تر دا نورو ډېرې گرانې دي خو زحمت زغملای سي.

د نېکمرغۍ او خوښۍ لوړ آسمان د بدمرغۍ ژور او تیاره څاه ته لوېږي د درد غرونه پر هغه تېرېږي، د اوښکو په سېل کې غوټې خوري، او لا تر اوسه د لویو زحمتونو د زغملو لپاره ژوندی دی.

زموږ جسم یو وړوکی لوښی دی چې د ډېر لږ تکلیف او زحمت څخه پر ځنډو را اوړي، د بدن ظرفیت خپلې پولې لري او آن په تمرین او ریاضت کې هم باید پام ورته وسي، مگر د روح پراخوالی دونه ډېر دی چې د دې ټولې نړۍ رنځونه پکښې ځایېدلای سي.

حواس مې گډو وډ سوي ول، هغه څه چې مې په یاد دي لیدل مې چې د آسمان او مځکې لاندې هر څه ستړه، آن ډېرې هم نڅا کوي او خوشحالي کوي، زه هم بېواکه راولاړ سوم، او پر خپل ځان راڅرخېدم، او په لوړ آواز مې خندل. ښایي هغه منظره د لمر له ځلېدلو او د تودې هوا له وجې وه، په هغه حال کې مې د هوا څپې چې له نور او حرارت څخه تولیدېدلې، د نڅا پر ځای او د طبیعت د خوښۍ په نامه نیولې او لېونی وم، فکر مې کاوه چې غټې ډېرې مې په پښو پورې ترلې دي، زرپانه تر ما وړاندې ځي او زه چې هر څونه هڅه وکړم نه ور رسېږم، نارې مې وهلې او سر او بدن مې په نوکانو گروي، نه پوهېږم څونه وخت په دغه حالت کې وم، کله چې پر هوښ راغلم ځان مې په یو سخت حالت کې ولیدی، نیم بدن مې په اوبو کې و، دا فکر مې وکړ چې دا زارۍ نه منونکی دښمن هغه زاړه زحمتونه بیا نوي او بیا مې غواړي په راز ـ راز ستونزو ووژني، بیا مې په یاد سوه چې زه څوک یم او په کوم حالت کې یم، فکر مې وکړ چې باید ببله وژلو بل هیڅ شي ته انتظار ونکړم، باید په ډېر زحمت مړ سم.

زه دوې درې روځې وړاندې ځان وژلو ته چمتو وم خو په هغه وخت کې له مرگه بېرېدلم او مرگ مې تر ټولو بدترینه بلا گڼل، غوښتل مې چې ژوندی واوسم او په زرپانې پسې ولاړ سم.

ټوله نړۍ زرپانه سوې وه، نه مې سوای کولای چې له دنیا لاس واخلم. د ویالې د اوبو کړۍ د لمر تر شغلو لاندې د زرپانې د زلفو غوندې په نظر راتللې، بېواکه ویالې ته ورغلم او د اوبو حلقې مې ښکلولې او په اوبو مې سترگې لندولې.

دونه کمزوری سوی وم چې نه مې بدن درد درلود او نه اروایي رنځ. په تخیل کې مست وم، زرپانه مې لیدله چې د یوې ډلې سپینو کوترو پر شا پرته ده او د آسمان په کنارو کې گرځي، زه هم والوتلم او ځان مې ور ورساوه، او پر څنگ یې کښېناستلم. ډېر وخت نه و تېر سوی چې فریدون هم په خندنې ډول راغلی او پر تخت کښېناستی، د خوشحالۍ د هغو تیرو وختونو غوندې مو مجلس له مینې او سرور څخه ډک و.

◎ ◎ ◎

نه پوهېږم چي بيا څه وسول، يو ځل مي سترګي خلاصي کړې او يو عجيب عالم مي وليدی، زړيانه مي سر ته ولاړه ده او راته ګوري په غوږو مي څه نه اروېدل، مګر فکر مي کاوه چي راته وايي: راته وګوره څه رابانديې تېر سوي دي، رنګ مي څونه ژړ سوی دی، ښکلا او رنګيني مي له منځه تللې ده، له ډيري ژړا څخه مي سترګي سرې سوي دي، څه رنځونه او شکنجې رابانديې تيري سوي دي، مګر هر ډول چي و را وتښتېدلم او مينه او عفت مي ستا لپاره وساتل

له ماښامه تر سهاره نه يم بيده سوې او د روڅي تر لمر لوېدو پوري په سوځوونکو بيابانونو کي وړې او تږې په تا پسې ګرځېدلم. د هغو له بيري او د ځناورو له وهمه مي دا کمزوري زړه دونه تپېدلی دی چي اوس له وينو ډک دی! دغه ټول دردونه او زحمتونه ستا له بدګوماني څخه راپېښ سول، آيا بيا هم زما په وفا کي شک لرې؟ آيا په دغه حال کي دي بيا هم په زړه کي زما په څېر تور خال پاته دی؟ ... ما په دغه شکل او صورت ومنه، ډېر تر ډېره مي خوښه ولره، زه ستا وفاداره زړيانه يم، زه ستا مينځه يم، هغه روح مي دی، مګر صورت مي بدل سوی دی، زما ګناه نه ده.

کرار ـ کرار پر هوښ راغلم او داسي مي حس کړه چي بو څوک مي بدن راموږي، پر سد سوم او حقيقت مي وليدی. يو قوي هيکله تور سړی چي ترکمني خولۍ او کالي يې اغوستي ول، بدن يې راموږي، ښځه يې سر ته ولاړه وه او کتل يې، سري يې په نصواري دسمال کي پېچلي و، رنګ يې تک ژړ او سترګي يې د بادام په شکل وې.

تور سړي په ترکي راڅخه وپوښتل چي کولای سې يو شی وخورې؟

ورته ومي ويل خوړک څه لازم دی، ته چي ما ژوندی نه پرېږدې، ويل مه بېرېږه، موږ ترکمن نه يو، لاس مي ورښکل کی او بدرنګه تور سړی د جنت حور راته وايسېدی.

اوبه او ډوډۍ يې په خوله کي راکړه، ځان مي سره سم کی او د دې لپاره چي هغه ښځه هم وپوهيږي ټوله کيسه مي په ترکي ورته وکړه

دواړو ژړل، تور سړي يو څه پيسې له جيبه راوايستلې او په دواړو لاسو يې زما مخته ونيولې او ويل يې دا ستاسو مال دی، هغه چي ترکمن درڅخه اخيستی و، زه د غلا مال نه خورم، دغه سپين آس هم د هغه ترکمن مال دی او تاسو ته رسيږي. سپاره سې چي يو ځای ښار ته ولاړ سو، ارپان مي ځني وپوښتل چي تا زړيانه وليده؟ ويل يا، ما هغه ترکمن چي ته يې ښښاني وايې وليدی، په بيابان کي پروت و او مړ سوی دی.

په جېب کي مي يې دغه پيسې پيدا کړې او آس يې چي د ده له جسد سره ولاړ و، ګل بهار ته مي ورکړ، دا زما ښځه ده، او پر هغه آس سپره سوه. ډېر ښه اتفاق و، څرنګه چي زموږ آس ډېر ستړی سوی و، له برايي څخه بيا تر اوسه زه او دغه نجلۍ پر هغه آس سپاره وو او موږ يې له مرګه ژغورلي يو، ځني ومي پوښتل چي چيري يې وژغورلاست؟ ويل زموږ سرګذشت ډېر اوږد دی او دا يې لنډيز دی.

نور بيا ...

**پښتو لنډۍ**

ما د اسمان سپينه سپوږمۍ کړې
چي د جانان په غېږ کي تل ولاړه يمه

زړه مي له سترګو ګيله من سو
چي ديدن ته کړې زه عبث غم تېرومه

زړګی قاضي سو وېش يې وکړ
د ميني غم دی په تقسيم به يې ګالونه

يار مي په ګلو کي بيده دی
د سپيني خولې شبنم به زه پرې اورومه

د ګلو ډک اوربل پرې ټيټ کړه
که شېرين يار پر ځکندن وي روغ به سينه

زما دي بيا تمه پيدا کړه
چي په سورکو شونډو دي وخندل مينه

د اشنا مرګ راته اسان دی
چي دی ولاړ وي زه به بل ته وخاندمه

خندا له تا سره ښايېږي
ماته پراته دي په خولۍ خولۍ غمونه

خدايه ته خپل همزولي راکړې
که نيستي راغله په خندا بې تېروونه

ته په لوستلو صرفه مه کړه
نجونو پېغور راکړ چي يار دي امي سونه

ګل مي کاره يار راته ناست و
چي ګلان ګل سول يار مي توري خاوري خورينه

سترګي مي مه پټوئ خلکو
روح مي معطل دی بې وفا جانان راځينه




**اداره**

❊ ۵ شنبه د لړم ۲۸ مه:

د ولایت مقام اداري غونډه د کندهار والي انجینر محمد یوسف پښتون په مشري جوړه سوه. مکې مکرمې ته د حاجیانو د تګ راتګ په چارو کښي د ښه آسانتیاوو د برابرېدو په موخه یې پرېکړې وکړې او اړوندو څانګو ته یې د یو لړ نورو چارو د سمون په اړه د همدې پرېکړو د پلي کېدو دنده وسپارل.

❊ شنبه د لړم ۳۰ مه:

د اوبو او برېښنا وزارت د لومړي معین اروابناد ډاکټر غلام جیلاني جلیس فاتحه د کندهار ولایت، د اوبو او برېښنا وزارت او د خدای بخښلي د خپلوانو له لوري د زرګونو هیوادوالو، دولتي، ملکي، پوځي او امنیتي ادارو د کارکوونکو په ګډون په داسي حال کښي چي کندهار او زابل ولایتونو والیانو هم پکښي ګډون درلود د خرقې مبارکي په جامع جومات کښي واخیستل سوه.

د فاتحې په دې غونډه کښي د پاک قرآن لوستل بشپړ سوه او په ترڅ کښي یې د اروابناد ډاکټر جلیس د اروا خوښۍ له پاره دوعاوي وسوې او د فاتحې په وروستیو کښي د اروابناد جلیس ژوندلیک د اطلاعاتو او کلتور رئیس او د اصلاحي جرګې مرستیال عبدالمجید بابي واوراوه.

اورابناد جلیس د برېښنا په چارو کښي د لوړو مسلکي زده کړو څښتن، یو زړه سوانده سپېڅلی، رښتینی او پر هیواد او ولس مین افغان وُ چي د دندي د پیلېدو څخه یې په لړه موده کښي د هیواد په بېلابېلو برخو کښي د برېښنا لاسته راوړني ته ډېر لوړ خوند او رنګ وباخښه. د بده مرغه دا پیاوړی افغان د کوچني اختر څخه یوه ورځ مخکي د کندهار ـ کابل د لویي لاري په اوږدو کښي د دامان ولسوالۍ د اخوند صاحب د زیارت په نږدو کښي په ترافیکي پېښه کښي ژوبل او وروسته یې په میرویس روغتون کښي د ژوند سره مخه ښه وکړه.

د اروابناد جنازه د کوچني اختر په لومړۍ ورځ د کندهار والي انجینر محمد یوسف پښتون او د همدې ولایت د ملکي، پوځي او امنیتي څانګو د مشرانو، اړوندانو او لسګونو ښاریانو او د اروابناد د خپلوانو لخوا د دوی په پلرنۍ هدیره کښي خاورو ته وسپارل سوه.

❁ یکشنبه د لېندۍ اوله :

کندهار والي انجينر محمد يوسف پښتون په داسي حال کښي چي د اطلاعاتو او کلتور رئيس عبدالمجيد بابي، د ګمرک رئيس عزيز الله اسحاقي او د امنيه قوماندانۍ او ملي امنيت د ځانګو استازو هم ګډون درلود د کندهار د څمتوړو (کسټ) پلورونکو سره د منډيګک په ماڼۍ کښي وليدل، او د ناوړو څمتوړو، د راوړلو او پلورلو د مخنيوي په اړه د لارښوونو او يو لړ غوښتنو وروسته وړ پرېکړي وسوي.

❁ یکشنبه د لېندۍ اوله :

د پنځه کلن پرمختيايي او بيا ودانولو له پاره د پلان جوړوني په موخه د سهېل لوېديځ سمت د اړوندو واليانو ګډه غونډه د منډيګک په ماڼۍ کښي جوړه سوه.

دغه پلان دري برخي لري چي په لومړۍ برخه کښي بشري ځواک او د ټولني د ساتني، دوهمه برخه يې د ملي اقتصاد د پياوړتيا او ساختماني جوړښت او دريمه برخه يې د سوداګري، پانګي اچوني، عامه او اداري امنيت په اړه دي او دري واړه د کندهار والي انجينر محمد يوسف پښتون لخوا روښانه سوي.

❁ دوشنبه د لېندۍ دوهمه :

د کندهار د اصلاحي جرګي غونډه د ښاروالۍ د غونډو په خونه کښي د احمدولي کرزي په مشري جوړه سوه، په غونډه کښي کندهار والي انجينر محمد يوسف پښتون هم برخه لرله. د ترانسپورټ او ښاري هټۍ والو پر ستونزو غور وسو. او په ترڅ کښي يې په سهېل لوېديځ سمت کښي د ټولټاکنو د ځانګي مسئول (ميرو) چي دنده يې په افغانستان کښي په ټولټاکنو کښي پای ته رسېدلې د کندهار د خلکو پراخ ګډون څخه مننه وکړه.

❁ سه شنبه د لېندۍ دريمه :

د کندهار پوهنتون د طب پوهنځي محصلينو ته د ولايتي بيا رغوني د ډلي لخوا شپږ مياشتنۍ طبي کورس په داسي حال کښي چي د کندهار والي انجينر محمد يوسف پښتون او د بيا رغوني د همدې برخي مسئولينو هم برخه لرله پيل سو. محصلين به په هره اونۍ کښي څلور ورځي او هره ورځ دري ساعته د کوچنيانو، ښځو او ځوانانو د عصبي او جراحي ناروغيو په برخه کښي زده کړه وکړي.

❁ چهارشنبه د لېندۍ څلرمه :

د کار او ټولنيزو چارو وزير حکيم تهي وال د شهيد عبدالاحد خان د روزنتون او وړکتون، زائد وړکتون او روزنتون او هم د صنعتي پارک او فابريکو څخه کتنه وکړه.

❁ ۵ شنبه د لېندۍ ۵ مه :

د منډيګک په ماڼۍ کښي د ولايت مقام اداري غونډه کښي چي د ولايت مرستيال محمد انس خان په مشري جوړه سوه د کوکنارو د کرلو د مخنيوي په اړه پرېکړه وسوه.

❁ ۵ شنبه د لېندۍ ۵ مه :

د سهېل لوېديځ سمت د واليانو په غونډه کښي چي د کندهار والي انجينر محمد يوسف پښتون په مشري د منډيګک په ماڼۍ کښي جوړه سوي د کوکنارو د کښت د په کلکه مخنيوي په اړه پرېکړه وسوه.

او په ترڅ کښي يې انجينر پښتون د کندهار ولايت ولسوالانو او امنيه قوماندانانو ته لارښوونه وکړه چي په خپلو سيمو کښي د کوکنارو کښت د يوه مخه که له منځه يونه وړای سي پر نوره جزا سربېره به د دندي څخه هم ګوښه سي.

په غونډه کښي د اړوندو ولايتونو، مرستيالانو، امنيه قوماندانانو، د ملي امنيت رئيسانو، د ولايت بيا رغوني د ډلو استازو او د امريکا د نړيوالي اداري استازو هم ګډون درلود.

❁ شنبه د لېندۍ ۷ مه :

د اطلاعاتو او کلتور وزارت د لرغون پېژندني رئيس څېړونکي محمدنادر رسولي په مشري راغلي پلاوي د اطلاعاتو او کلتور د رئيس عبدالمجيد بابي سره د ده د کار په خونه کښي وکتل. د تاريخي اماکنو او ابداتو په اړه تر يو لړ خبرو وروسته راغلي پلاوی د ښاغلي بابي په مشري د زاړه ښار نارنج کلا، او څلوېښت غرزينو څخه ليدنه وکړه او پلاوي د زاړه ښار کلا ته نژدې د کيندنو او ودانيو د جوړولو څخه خواشيني ښرګنده کړه. د بل خبر له مخي پلاوي کندهار والي انجينر محمد يوسف پښتون سره هم وکتل.

❁ ۲ شنبه د لېندۍ ۹ مه :

احمدشاهي مېنه د ټول ګټو د وزير ګل آغا شېرزي لخوا د دامان ولسوالۍ کښي پرانستل سوه، په دې مېنه کښي د کندهار د ماسټر پلان له مخي د شکيل نوري شرکت لخوا د ۳۸۶۰ کورونو د جوړېدو پلان جوړ سوی چي يوه نمره مځکه به يې د ۲۲۰۰۰ افغانيو په بيه مستحقو کسانو ته ورکړل سي.

❁ ۲ شنبه د لېندۍ ۹ :

د اصلاحي جرګي غونډه د دې جرګي د رئيس احمدولي کرزي په مشري د ښاروالۍ د غونډو په لويه خونه کښي جوړه او په داسي حال کښي چي د جرګي مرستيال عبدالمجيد بابي د جرګي د اجنداء ځرګندونه مخته وړله د

نورو مسئلو تر څنګ پر هدیرو د لاسو اچوني مسئله هم په غور وڅېړل سوه.

❁ ۴ شنبه د لېندۍ ۱۱ مه

د هیواد، سیمې او ختیځ د اوس مهال د لوی او منلي پوه اکاډمیسین پوهاند عبدالشکور رشاد د مړیني د خبر په اوریدو سره کندهار والي انجینر محمد یوسف پښتون د اطلاعاتو او کلتور د رئیس عبدالمجید بابي په مشري د کندهار د فرهنګي شوري غړي هر یو ډاکټر عبدالرازق پالوال، حیات الله رفیقي، فضل محمد پنهان، عبدالکریم طالب رحیمي او عبدالمالک همت د پوهني ریاست اړوند د یو شمېر مشرانو ښوونکو غلام محمد خان، مهدي خلیق، نور الحق خان او سراج الدین خان په ګډون د منډیګک ماڼۍ ته وبلل او د ارواښاد د جنازې د راتللو پر مهال د چارو د سمون او هم د قبر د ځای پر ټاکلو غور وسو، او پرېکړه وسوه چې دغه کسان دي د عبدالمجید بابي په مشري د چارو لیکنه سبا ته برابره څو په اداري غونډه کښي لا غور ورباندي وسي.

❁ ۵ شنبه د لېندۍ ۱۲ مه.

د ولایت مقام په اداري غونډه کښي چې د کندهار والي انجینر محمد یوسف پښتون په مشري د منډیګک په ماڼۍ کښي جوړه سوه. لومړي د اطلاعاتو او کلتور رئیس عبدالمجید بابي لخوا د ارواښاد علامه رشاد بابا د ښخېدو د چارو د سمون هغه پلان چې تېره ورځ د هغه په اړه د غور دنده ورسپارل سوې وه وړاندي کړ. او د قبر له پاره خپله د کندهار والي د ټاکلي ځای یادونه وکړه کوم چې تر غونډې دمخه د اطلاعاتو او کلتور د رئیس او فرهنګي شورا د غړو په ګډون د هغه ځایه لیدنه سوې وه. وروسته د چارو د سمون نورو اړوندو کسانو ته لکه د ترانسپورټ، ملي بس، پوهنتون، پوهني ریاستونو، امنیه قومندانۍ او ترافیکو ته هم د په پام کښي نیولو دندو د سرته رسېدو لارښوونه وسوه او هم د عبدالمجید بابي په وړاندیز پرېکړه وسوه چې کندهار راډیو او ټلویزیون دي تر درو ورځو د موسیقۍ خپرېده وځنډوي. وروسته پر یو شمېر نورو مسئلو هم غور وسو او پر پرېکړي تره سره سوې.

❁ جمعه د لېندۍ ۱۳ مه:

د ارواښاد پوهاند علامه رشاد جنازه د کندهار پوهنتون په انګړ کښي په داسي حال کښي خاورو ته وسپارل سوه چې د هیواد تر څنګ پر ټوله کندهار د ویر او ماتم سیوري خپور و. جنازه په ډېرو لوړو او شانداره دود په داسي حال کښي چې د ټول ګټو وزیر ګل آغا شېرزي او د بېلابېلو ولایتونو ګڼ شمېر فرهنګیانو، د کابل پوهنتون، علومو اکاډمۍ استادانو او د ارواښاد خپلوانو او ارادتمندانو بدرګه کول د دوی د زوی ډاکټر طارق رشاد په ملتیا د غرمې مخکښي کندهار ته راورسېدل. کندهار والي انجینر محمد یوسف پښتون د دې ولایت د اطلاعاتو او کلتور رئیس عبدالمجید بابي د اداراتو رئیسانو د اصلاحي جرګې رئیس احمدولي کرزي، د جرګې غړو، امنیه قومندان او د دې قومندانۍ اړوندانو، پوځي افسرانو، فرهنګیانو، او د ارواښاد علامه رشاد علاقمندانو او ګڼ شمېر ښاریانو د ښار د ختیځ څخه د اخوند صاحب تر زیارت او آن د هغه څخه په ډېر واټن وړاندي د دې درنې جنازې درنښت پر ځای کړ.

او همهلته د لنډ روغبړ وروسته ټوله په ګډه په زیات برم سره د سلګونو موټرانو په سپرلۍ د جنازې سره په ملتیا د پوهنتون انګړ ته راورسېده. لومړي د اسقاط او بیا د جنازې د لمانځه دود پر ځای سو، وروسته د همدې ویر له امله د ولسمشر د خواشیني پیغام د ټولګټو د وزیر ښاغلي ګل آغا شېرزي لخوا ولوستل سو. همدارنګه د کندهار ولایت د ټولو اوسېدونکو د ګروم پیغام او خواخوږي کندهار والي انجینر محمدیوسف پښتون په خپله وینا کښي څرګنده کړه.

وروسته د اطلاعاتو او کلتور د رئیس عبدالمجید بابي له لوري د هغه ارواښاد د ژوندلیک تر لوستلو وروسته د ټولنیزو چارو وزیر ښاغلي حکیم تنیوال خپله وینا په دې اړه واورول، د ننګرهار د والي ښاغلي حاجي دین محمد د خواشیني پیغام ښاغلي لال پاچا ازمون واوراوه او بیا د فرهنګي ټولنو د خواشنیو پیغامونه واورول سوه، همدارنګه استاد محمدآصف صمیم هم خپل تاثرات څرګند کړه. وروسته د ښاریانو په استازیتوب کندهار ښاروال عبدالله پوپل وینا وکړه. او په جنازه کښي د ګډون کوونکو څخه ښاغلي ډاکټر طارق رشاد د ارواښاد کورنۍ په استازیتوب مننه وکړه او بیا جنازه په ډېر برم د خلکو په زیاته ګڼه ګوڼه کښي خاورو ته وسپارل سوه.

❁ شنبه د لېندۍ ۱۴ مه:

د پوهاند علامه رشاد بابا فاتحه د ولایت مقام لخوا د خرقې مبارکې په جامع جوماټ کښي د سلګونو زرو هیوادوالو په پراخ ګډون سره واخیستل سوه. په دې مراسمو کښي کندهار والي انجینر محمدیوسف پښتون، د کندهار

ملکي، پوځي او امنيتي ادارو چارواکو، مسئولينو او منسوبينو د پوهنې رياست مشرتابه، ښوونکو، ټولو زده کړيالو، فرهنګيانو، پوهانو، د ښار د بېلابېلو ستونو اوسېدونکو، د ولايتونو او پوهنتونو څخه راغلو پوهانو، ليکوالانو او د استاد علاقمندانو د غير دولتي مؤسسو مسئولينو او کارکوونکو او د افغانستان د علومو اکاډمي پښتنو استادانو برخه واخيستل او د اروابناد د اروا د لا خوښي له پاره يې دوعاګاني وکړې او ودوى علمي عظمت ته د درنښت د مراتبو سره يو ځاى د پوهاند کورنۍ او پاتې کسانو ته د خواخوږيو څرګندوني او د جميل صبر غوښتني پر ځاى سوې.

فاتحه د غرمې تر ۱۲ بجو په داسي حال کښي چي د اطلاعاتو او کلتور رئيس عبدالمجيد بابي او کندهار ښاروال عبدالله پوپل و راغلو کسانو ته د هرکلي او درناوي دود پر ځاى کاوه پاى ته ورسېده، او تر فاتحې وروسته د غونډې برخوالو او مېلمنو د غرمې ډوډۍ د ښاروالۍ د غونډو په لويه خونه کښي د کندهار والي، دولتي مشرانو او د اروابناد د خپلوانو او زامنو سره يو ځاى وخوړه.

❁ يکشنبه د لېندۍ ۱۵ مه :

په کندهار کښي د ولايتي بيا رغوني ټيمونو يوې غونډې په ترڅ کښي د امنيه قومندانۍ مشر خان محمد مجاهد ته په داسي حال کښي چي د ولايت مرستيال محمد انس هم ګډون درلود ۱۴ ارغړۍ موټران او ۶ ارغړۍ موټرسايکلان ورکړه.

❁ ۲ شنبه د لېندۍ ۱۶ مه :

د کندهار پوهنتون د ښځينه محصلاتو ليليه چي د المان هيواد په مالي لګښت چي ټول څلور ميليونه افغانۍ او ۱۳۰۰۰ امريکايي ډالره کيږي جوړه سوې، د لوړو زده کړو د وزير ډاکټر محمدشريف فايز او کندهار والي انجينر محمد يوسف پښتون لخوا په داسي حال کښي چي په افغانستان کښي د المان سفير هم حاضر و، د پټې په پرېکولو سره پرانستل سوه.

❁ ۳ شنبه ۱۷ مه :

د اروابناد پوهاند رشاد بابا د قبر او د هغه دپاسه د ودانۍ د جوړېدو د څرنګوالي جرګه ګۍ د ولايت د مرستيال محمدانس خان په مشري د اروابناد د قبر څخه ليدنه وکړه، هلته د دوعاوو تر دود وروسته دغه جرګه ګۍ چي د اطلاعاتو او کلتور رئيس عبدالمجيد بابي، کندهار ښاروال عبدالله پوپل او د ښار او کور جوړولو رئيس انجينر ننګيالي ګډون درلود همهلته د قبر دپاسه د اروابناد د زامنو هر يوه ډاکټر خالد رشاد، ډاکټر طارق رشاد او انجينر شهرشاه رشاد سره په داسي حال کښي چي د کورنۍ نورو غړو يې هم شتون درلود د قبر د جوړېدني او د هغه د پراخوالي او غولي د ټاکني په اړه هر اړخيزه خبري او سلا مشورې وسوې او پرېکړه وسوه چي په بېړه دي د زيارت د جوړولو چاري پيل سي د ښار او کور جوړولو رئيس ته دنده ورکړه سوه چي د زيارت او ګنبدي ډول بايد ډېر ښکلي وي همهلته د احمدشاه بابا د علمي مرکز مشرتابه او غړو د دغه زيارت د جوړولو په کار کښي خپل هر ډول تياري څرګند کړ.

❁ ۵ شنبه د لېندۍ ۱۹ مه :

د کندهار ـ کابل د لويي لاري ۵۰ کيلومتره سړک چي د جاپان هيواد په مرسته جوړ سوى د ټول ګټو د وزير ګل اغا شېرزي او کندهار والي انجينر محمديوسف پښتون او د جاپان د هيواد څخه د راغلي پلاوي چي پکښي د جاپان سفير ايروايوتا، د جاپان د دولت استازې مېرمن اوګاتا او د جايکا مؤسسې استازي کينو چيکو کومارو هم ګډون درلود پرانستل سو.

د جاپان هيواد د کندهار څخه د ګرشک تر ولسوالۍ پوري د ۱۱۴ کيلومتره سړک د جوړولو کار هم پيل کړى دى.

❁ ۵ شنبه د لېندۍ ۱۹ مه :

يوې کندهارۍ کډوالي خور مومنې نبکځو د خپلو شعرونو لومړنۍ ټولګه ۵۲ ټوکه د سلطان محمد نورزاد په لاس د کندهار د اطلاعاتو او کلتور رئيس عبدالمجيد بابي ته د وګړنيز کتابتون له پاره وسپارل، چي د کور ودانۍ او منني په ويلو سره ومنل سوه.

❁ يکشنبه د لېندۍ ۲۲ مه :

د ټول ګټو وزير ګل آغا شېرزي د کندهار ـ سپين بولدک، کندهار ـ ګرشک د لويو لارو د جوړولو د کمپنيو د مسئولينو سره وکتل هغوى د کندهار ـ سپين بولدک د سړک کار د منلو وړ ونه ګاڼه، او وړ لارښووني ورته وسوې.

❁ ۲ شنبه د لېندۍ ۲۳ مه :

د سناتور عبدالقدوس خان بارکزي جنازه په داسي حال کښي چي د ټول ګټو وزير ګل آغا شېرزى، کندهار والي انجينر محمد يوسف پښتون د ولايتي جرګې رئيس احمدوليخان کرزي، جيد عالم مولوي جنايي، جنرال عبدالقادر، د دولتي ادارو رئيسانو، پوځي او ملکي افسرانو او د اروابناد دوستانو هم ګډون درلود د ګورګان په سيمه

کښې یخبله پلرنۍ هدیره کښې خاورو ته وسپارل سوه. نوموړی د امریکې د کلیفورنیا په ایالت کښې مړ سوی او جنازه یې پرون ورځ کندهار ته رارسېدلې وه.

❁ ۳ شنبه د لېندۍ ۲۴ مه

پر هدیرو د خپل سر جوړ سوو کورونو د نړېدو کار د خلکو د غوښتنو او عرضپاڼو پر بنسټ د ولایت مقام په لارښوونه د ولایتي جرګې د مشورې سره سم پیل سو.

❁ ۴ شنبه د لېندۍ ۲۵ مه

د پوهنې د یوه تجربه لرونکي استاد ارواښاد محمد یونس خان جنازه چې تېره شپه د وړیښتې سوي ناروغۍ له کبله وفات سوی و، د سلګونو هیوادوالو په ګډون په داسي حال کښې چې کندهار والي انجینر محمدیوسف پښتون، عزیزالله واصفي، د ولایتي جرګې رئیس احمدولي کرزي، دیني علماوو، د دولتي ادارو رئیسانو، پوځي او امنیتي چارواکو، د پوهنې ګڼ شمېر ښوونکو، محصلینو او زده کړیانو هم برخه لرله د صوفي صاحب د زیارت تر اړخ خاورو ته وسپارل سوه.

❁ ۳ شنبه د مرغومي اوله:

د مرغومي شپږمه د یوې غونډې په ترڅ کښې چې د اطلاعاتو او کلتور ریاست لخوا جوړه سوې وه وغندل سوه. دا غونډه چې د لسګونو لیکوالانو، شاعرانو په ګډون د همدې ریاست د غونډو په لویه خونه کښې جوړه سوې وه د اطلاعاتو او کلتور رئیس عبدالمجید بابي په وینا پرانستل سوه. وروسته د مقالو برخه د نورو لیکوالانو د مقالو په ویلو بشپړه او بیا د مشاعرې په ترڅ کښې شاعرانو د دغې ورځې پېښې د هیواد په کړکېچن کښې د توري ورځي د پېښو په نوم وغندلې.

❁ ۴ شنبه د مرغومي دوهمه:

د کندهار پنځلسمه پلي فرقه په هغه غونډه کښې چې د دې فرقې په انګړ کښې جوړه سوې او کندهار والي انجینر محمدیوسف پښتون، د ۲۰۵ م نمبر قول اردو قمندان او د بې وسلې کولو مشرتابه غړو هم ورپکښې ګډون درلود په رسمي توګه لغوه او تجهیزات، وسایط، وسایل، درنې او سپکې وسلې یې ملي اردو ته وسپارل سوې، او اړوندان یې د بې وسلې کولو و پروګرام ته ورګډ سوه.

❁ ۵ شنبه د مرغمي درېیمه

په عدلي او قضایي سیستم کښې د سرغړوونکو کوچنیانو له پاره د عدالت د تامین تر سرلیک لاندي دوه ورځنۍ روزنیز ورکشاپ د سهېل لوېدیځ سمت د بشر د حقوقو د دفتر لخوا د محکمو د تامیناتو، څارنوالۍ، پولیسو، ملي امنیت او د جېل د مسئولینو په ګډون جوړ سو.

❁ یکشنبه د مرغومي ۶ مه

د حج او اوقافو وزیر پوهاند نعمت الله شهراني او د کور او ښار جوړولو د نوي وزیر انجینر محمدیوسف پښتون لخوا د ټول ګټو مخکنی وزیر ګل آغا شېرزی د کندهار د نوي والي په توګه د کندهار ولایت د دولتي ادارو کارکوونکو او خلکو ته د پرتمیني غونډې په ترڅ کښې د کندهار ولایت په تاریخي ودانۍ کښې ور وپېژندل سو.

غونډه پسله هغه چې د ښارصفا څخه د ګل آغا شېرزي هرکلی د زرګونو ښاریانو لخوا د ولایت تر وره وسو د خرقې شریفې تر زیارت وروسته د قرآن مجید د مبارکو ایاتونو په لوستلو پیل سوه. وروسته د اطلاعاتو او کلتور رئیس عبدالمجید بابي د کندهار د خلکو او دولتي ادارو د کارکوونکو په استازیتوب ښاغلي شېرزي ته هرکلی ووایه او د هغوی د مخکنۍ دورې د بیا جوړوني ګڼ شمېر کارونه یې وستایل او نور یې هم د بریالیتوب غوښتنه ورته وکړه. بیا پوهاند شهراني د کندهار د والي او بیا سلاکار وزیر په توګه د ولسمشر حامد کرزي فرمان ولوست او بیا یې د ننني غونډې او د خلکو د پراخ او بېساري هرکلي څخه خوښي وکړه. بیا د کندهار مخکني والي او اوس د کور او ښار جوړولو وزیر انجینر محمدیوسف پښتون په خپلو خبرو کښې د شېرزي د مخکنیو سرته رسېدلو کارو او په خلکو کښې د ګرانښت ستاینه وکړه.

وروسته ښاغلي شېرزي د خلکو د هرکلي څخه مننه وکړه او خلکو ته یې تر وسه د خدمت کولو ډاډ ورکړ. بیا د شهراني، پښتون او شېرزي لخوا د ولایت تاریخي ودانۍ چې نوې ترمیم سوې وه د پټۍ په پرې کولو سره پرانستل سوه.

د یو بل خبر له مخي کندهار والي تر دې مراسمو وروسته د کندهار ولایت په مېلمستون کښې د ګڼ شمېر عالمانو، مخورو، سپین ږیرو، مشرانو او خوانانو سره وکتل او د هغوی د مبارکۍ مراتب یې ومنل.

❁ ۴ شنبه د مرغومي ۹ مه

د جمهور رئیس سلاکار وزیر او کندهار والي د ولایتي جرګې د رئیس او غړو سره په داسي حال کښې د منډیګک په ماڼۍ کښې چې د یو شمېر ولایتونو څخه د ښاغلي شېرزي د نوي دندې د مبارکۍ له پاره د راغلو مېلمنو، د

کندهار ولایت سپین ږیرو، مخورو، دیني علماوو او ساداتو هم برخه لرله وکتل.

لومړی د ولایتي جرګې رئیس احمد ولي کرزي و کندهار ته د مېلمنو د راتګ له امله هرکلی وواېه او د ښاغلي شېرزي څخه یې مننه وکړه چې د هغوی مېلمه پالنه په ښه ډول سوېده، بیا د جرګې غړو د کندهار په اداره او د اداراتو څخه دباندي د ستونزو لکه د اداري فساد، خانګرو بندخایونو، د خانګرو او حکومتي محکو لاندي کېده په ځینو ولسوالیو کښي د تغیر او تبدیل پر اړتیا یادونه وکړه.

وروسته ښاغلي شېرزي وویل: زما راتګ ستاسو د خدمت له پاره دی. قانوني کړنه به کوم او د قانون پرته د هیچا مراعت نه کوم او دا ستونزي به ستاسو په مرسته هواروم. نور به اهلیت د قوم، ژبي او سمتي مسایلو قرباني نه وي.

❁ ۵ شنبه د مرغومي ۱۰ مه:

د ۲۰۵ قول اردو قومندانۍ د کندهار نړیوال هوایي ډګر ته څرمه د خانګړو مراسمو په ترځ کښي د دې قومندانۍ د قومندان تورن جنرال محمدمسلم عامر لخوا پرانستل سوه.

په دې مراسمو کښي خپله عامر د هغه مرستیال برید جنرال محمدسرور او رئیس ارکان یې برید جنرال نظام الدین چوپان خبري وکړې.

دغه قومنداني د متحده ایالاتو، سنا مجلس د څلور میلیارډو ډالرو له مرستي څخه جوړه سوه.

❁ ۵ شنبه د مرغومي ۱۰ مه:

کندهار والي ګل اغا شېرزي د کندهار پوهنتون ښلابیلي برخلي ولیدلې. هغوی د پوهنتون چارچاپېر دېوال لوړېده اړین وبلل او هم یې د سلو ټوټو غالیو او کتابتون سره د سل ښېنو الماریو مرسته وکړه. د کندهار مجلې خبریال خبر راکوي ښاغلي شېرزي په داسي حال کښي چې د راډیو تلوېزیون او د ښار او کور جوړولو او اړونده ادارو چلوونکي ورسره ملګري وه د کندهار د راډیو تلوېزیون له ودانۍ څخه چي وروستیو بارانونو زیان ور اړولی و لیدنه وکړه، او اړوندو کسانو ته یې ور لارښووني وکړې.

❁ شنبه د مرغومي ۱۱ مه:

کندهار والي ګل اغا شېرزي د منډیګک په ماڼۍ کښي د دوهم قول اردو او امنیتي قومندانیو د اړوند قومندانانو هر یوه جنرال عبدالخالق حلیم او ډګر جنرال خان محمد مجاهد سره چې د دې قومندانۍ ځیني اړوندان هم حاضر وه وکتل. هغوی د کندهار والي په توګه د ګل اغا شېرزي د بیا ټاکنې له امله هغوی ته مبارکي وویل هغوی ښاغلي شېرزي ته د دې ولایت د هر اړخیزې روغتیا په لاره کښي د هر ډول همکاریو ژمنه وکړه.

❁ یکشنبه د مرغومي ۱۳ مه:

د واړومن امنیت د ټېنګښت په موخه د دواړو قول اردوګانو او امنیه قومندانۍ د قومندانانو سره کندهار والي ګل اغا شېرزي د منډیګک په ماڼۍ کښي وکتل چې د ولایتي جرګې رئیس احمدولي کرزی او د ولایتي بیا رغوني مسئولینو هم په دې غونډه کښي برخه لرله او یو لړ تصامیم ونیول سول.

❁ یکشنبه د مرغومي ۱۳ مه:

کندهار والي ګل اغا شېرزي په څلورو سمتونو کښي د سړکانو د کار څخه پداسي حال کښي چې یو شمېر انجینران ورسره ملګري وه لیدنه وکړه، دا سړکان د دوی په لارښوونه په بنسټیزه توګه د خلکو د سوکالۍ له پاره جوړېږي.

❁ ۲ شنبه د مرغومي ۱۴ مه:

د بشر د حقوقو د روښانه کولو تر سرلیک لاندي د افغانستان د مطالعاتو د مرکز لخوا د سلګونو ښځینه ښوونکو په ګډون د زرغونې انا په لېسه کښي د اطلاعاتو او کلتور رئیس عبدالمجید بابي په وینا سره پیل سو. وروسته د دې مرکز د راغلو کسانو څخه قاضي عبدالرحمن عادل او پوهاند رازقي نړیوال هم په وار سره خبري وکړې. دا ورکشاپونه به په نورو ښوونځیو کښي هم تره سره سي.

❁ ۳ شنبه د مرغومي ۱۵ مه:

د ولسمشر سلاکار وزیر او کندهار والي ګل اغا شېرزي د منډیګک په ماڼۍ کښي د خاکرېز، ارغسان، شاه ولیکوټ، ژړۍ ولسوالۍ او په لویه ویاله کښي د میشتو سپین ږیرو، مخورو، دیني عالمانو او د خلکو د استازو سره د هغوی د ستونزو د اورېدو په اړه وکتل.

❁ ۵ شنبه د مرغومي ۱۷ مه:

د ولایت مقام اداري غونډه د ولسمشر د سلاکار وزیر او کندهار والي ګل اغا شېرزي په مشري د ټولو ادارو د مسئولینو په ګډون د منډیګک په ماڼۍ کښي جوړه سوه او په پیل کښي د اداري سیستم د سمون په اړه ښاغلي شېرزي ښه روښا واچول. هغوی وویل: زه به قانون پلي کوم او اداري فساد به له منځه وړم. په غونډه کښي د کابل او سپین بولدک د نوي اډې دوکانونو او پر دولتي محکو د خپل سره کورونو د جوړوني پر ستونزو خبري وسوې او لازمي پرېکړې وسوې.

❊ شنبه د مرغومي ۱۹ مه
د ولسمشر سلاکار وزیر او کندهار والي ګل اغا شېرزي د هلمند او کندهار ولایتونو د مشرانو سره د منډیګک په ماڼۍ کښې وکتل، په غونډه کښې د سیمه ایزو ستونزو د هواري له پاره خبري وسوې او په اړه یې د ور مرستو ژمنه ورکړه سوه
❊ شنبه د مرغومي ۱۹ مه
کندهار والي ګل اغا شېرزي د یو شمېر باندنیو مونسسو او انجوګانو د مسئولینو سره د منډیګک په ماڼۍ کښې د بیا رغوني په چارو کښې د هغوی د کارنده برخه اخیستني ټینګار وکړ، چې د غونډې په پایله کښې د هغوی لخوا د غوښتني سره سم د مرستو د چارو د غځېدو ژمنه ورکړه
❊ شنبه د مرغومي ۱۹ مه
یوه تن ملي سوداګر حاجي عتیق الله د کندهار ښار د زرغونتیا له پاره ۵۰۰۰ نیالګي او حاجي عزیزالله سوداګر د بیا جوړولو له پاره دوه میلیونه افغانۍ د ولسمشر سلاکار وزیر او کندهار والي ګل اغا شېرزي ته وسپارلې چې د هغوی لخوا د کور وداني په ویلو سره ومنل سوې
❊ ۲ شنبه د مرغومي ۲۱ مه
د ولایتي جرګې غونډه د دې جرګې د رئیس احمدولي کرزي په مشري د ښاروالۍ د غونډو په لویه خونه کښې جوړه سوه د نورو خبرو تر څنګ د کرونده ګرو سره د مرستو په اړه او هم د کوکنارو د کښت د مخنیوي او د منځه وړلو په اړه پراخي خبري وسوې
❊ ۲ شنبه د مرغومي ۲۱ مه
د نشه اي توکیو د قاچاق، ګټي اخیستني او کښت په وړاندي د مبارزې په موخه د منډیګک په ماڼۍ کښې پراخه غونډه جوړه سوه، چې لومړی د ولسمشر سلاکار وزیر او کندهار والي ګل اغا شېرزي مېلمنو او برخوالو ته ښه راغلاست ووایه او هم یې د غونډې موخې روښانه کړې وروسته د کورنیو چارو د وزارت څخه د نشه اي توکیو سره د مبارزې مرستیال ډګر جنرال محمدداود، د امریکا او انګلستان د سفارتونو استازو، د کلیو د پراختیا وزارت سلاکار زاخېل او د نشه اي توکیو سره د مبارزې لوی رئیس ستر جنرال ایو اصیل په وار سره خبري وکړې
❊ ۲ شنبه د مرغومي ۲۱ مه
د ولسمشر سلاکار وزیر او کندهار والي ګل اغا شېرزي د ښار او کور جوړولو، کادستر، فواید عامې، ښاروالۍ او مستوفیت استازي ورسره ملګري وه د میرویس مېنې او نورزو شاه برج د هغو سیمو څخه چې خپل سره کورونه پکښې جوړ سوي دي لیدنه وکړه
کندهار والي وویل دا خپل سره وداني به چې د ماستر پلان په خلاف جوړې سوي ورانیږي. ښاغلي شېرزي په میرویس مېني کښې د ملي سوداګرو د چارو د اسانتیاوو له پاره یو سوداګریز مارکېټ د جوړولو لارښوونه هم وکړه
❊ ۲ شنبه د مرغومي ۲۱ مه
د کندهار والي ګل اغا شېرزي په مشري په داسي حال کښې چې د ولایتي جرګې رئیس احمدولي کرزي، د باندنیو اړیکو مسئول خالد احمد پښتون، د ملي امنیت مرستیال او د ولایتي بیا رغوني او ائتلافي ځواکونو استازو هم ګډون درلود د کندهار د داړمن امنیت په اړه غونډه وسوه او ور پرېکړې وسوې
❊ ۴ شنبه د مرغومي ۲۳ مه
د پولیسو د روزنې سیمینار د ولایتي بیا رغوني په دفتر کښې د زیات شمېر پولیسو په ګډون جوړ سو. په دې سیمینار کښې د ولایتي بیا رغوني د مشر تر پرانستونکې وینا وروسته د ملي پولیسو د روزنیز مرکز مسئول پوهنمل مل پاسوال نظرالله ظریفي او بیا د کورنیو چارو د وزارت استازي ډګروال محمد حسین اندیوال او وروسته کندهار والي ګل اغا شېرزي په وار سره د موضوع په اړه هر اړخیزه خبري وکړې او بیا د سمینار عملي کار پیل سو
❊ ۴ شنبه د مرغومي ۲۳ مه
د ولایت مقام مرستیال محمدانس خان یوه ارغړۍ موټر د افغان ـ ترک (شاه حسین هوتک) لیسې د هغوی د اړونده چارو د سرته رسېدو له پاره ورکړه سوه او په کور وداني سره ومنل سوه
۴ شنبه د مرغومي ۲۳ مه
د کندهار د اطلاعاتو او کلتور د رئیس عبدالمجید بابي په مشري د کندهار هغه فرهنګي پلاوی چې د اروابښاد علامه رشاد د مړیني د څلوېښتې له امله د ننګرهار په مرکز جلال آباد ښار کښې په جوړ سوي سیمینار کښې د ګډون له پاره تللي و بیرته کندهار ته راورسېد
په دغه غونډه کښې د اطلاعاتو او کلتور د رئیس عبدالمجید بابي سربېره ښاغلو ډاکټر عبدالرازق پالوال، عبدالمالک همت، حیات الله رفیقي، انجینر عبداللطیف آشنا، جمال الدین یاور، مطیع الله روهیال او نوراحمد قرانمل هم برخه لرله.

❁ ۵ شنبه د مرغومي ۲۴ مه :

کندهار والي گل اغا شېرزي د سپين بولدک، معروف ولسوالۍ او د پولي څخه هغه خواته د سرخاو د کمپ د محوړو، سپين ږيرو او مشرانو سره د منډيگک په ماڼۍ کښي وکتل. ښاغلي شېرزي هغوی ته ډاډ ورکړ چي په سيمه کښي به د اساسي قانون د حاکميت له پاره کار کوي.

او د ملي يووالي او ډاډمن امنيت د ساتني په لاره کښي به ستاسو په مرسته هلي ځلي کوي.

❁ شنبه د مرغومي ۲۶ مه :

د ملگرو ملتو د کډوالو د اداري مسئول په داسي حال کښي چي د راستنېدونکو چارو وزير ډاکتر محمد اعظم دادفر او د افغانستان له پاره د نوموړي مؤسسي مسئول جيک موسی او د کندهار ولايت مرستيال محمدانس خان ورسره ملگري وه په ژړی دښت کښي د کډوالو د کمپ څخه ليدنه وکړه.

د ملگرو ملتو عالي کميشنر کډوالو ته وويل : زه هڅه کوم چي ټول بيځايه سوي افغانان بيرته خپلو آريزو ځايونو ته ولېږدول سي.

په دې کتنه کښي د کډوالو د ستونزو په اړه د هغوی لخوا څرگندوني واورېدل سوې.

❁ ۲ شنبه د مرغومي ۲۸ مه :

د ولسمشر سلاکار وزير او کندهاروالي گل اغا شېرزي په داسي حال کښي چي د يو شمېر ادارو مسئولين ورسره وه د کاکړو شاه برج او کابل ـ سپين بولدک تر دوه لاري پوري او هم د کاکړو شاه برج څخه تر ده باغ پوري د غځېدلو سړکانو د جوړېدو د کار څخه ليدنه وکړه.

دغه سړکونه د ښاروالۍ لخوا د ولايت د بودجې څخه جوړېږي.

❁ ۲ شنبه د مرغومي ۲۸ مه :

د ملي اردو د پياوړتيا په موخه (۲) نور د ملي اردو روزل سوي کنډکونه د ۲۰۵ نمبر قول اردو قومندانۍ سره د يوې غونډې په ترڅ کښي چي د ۲۰۵ نمبر قول اردو اړوند قومندان بريد جنرال محمدمسلم عامر يې مشرتوب کاوه ځای پر ځای سوه. دغه دوه کنډکونه د ۷۰۰ تنو افسرانو او سرتيرو څخه جوړ دي.

❁ ۵ شنبه د سلواغې اوله

د نېکمرغه لوی اختر لمونځ د ولسمشر د سلاکار وزير او کندهار والي ښاغلي شېرزي په گډون په داسي حال کښي چي ملکي ، پوځي او امنيتي چارواکي هم حاضر وه د زرگونو تنو ښاريانو سره يو ځای د نوي عيدگاه د جومات په انگړ کښي اداء سو.

وروسته گڼ شمېر چارواکو او ښاريانو د منډيگک په ماڼۍ کښي ښاغلي شېرزي ته د مبارکۍ ويلو دود پر ځای کړ.

❁ ۵ شنبه د سلواغې اوله :

د لوی اختر په لومړۍ ورځ د ماپښين پر درو بجو د کندهار يو شمېر فرهنگيانو د اطلاعاتو او کلتور رياست په بلنه د پوهاند علامه رشاد بابا پر قبر د هغوی د لومړي اختر په ياد غونډه کښي برخه واخيسته، په غونډه کښي د اطلاعاتو او کلتور رئيس عبدالمجيد بابي د پيل خبري وکړې وروسته د ولايت مرستيال محمدانس خان وږغېد بيا حيات الله رفيقي، عبدالمجيد بابي او جمال الدين ياور وېرني ولوستلې او وروسته د اروابناد پر قبر د ولايت مقام، اطلاعاتو او کلتور رياست او احمدشاه بابا د علمي مرکز لخوا د گلانو د جوړ سوو لويو کړيو تر اېښوولو وروسته د هغوی د اروا ښوښۍ له پاره دوعاوي وسوې. په غونډه کښي د پوهنتون رئيس انجينر شاه محمود بري هم برخه لرله

❁ يکشنبه د سلواغې ۴ مه :

د ولسمشر سلاکار وزير او کندهار والي گل اغا شېرزي د کندهار او هلمند ولايتونو د خلکو د يو شمېر استازو سره د منډيگک په ماڼۍ کښي وکتل. هغوی خپلي سيمه ايزي ستونزي واورولې چي د ښاغلي شېرزي لخوا يې د هواري ژمنه ورکړه سوه.

❁ ۳ شنبه د سلواغې ۶ مه :

د ولسمشر سلاکار وزير او کندهار والي گل اغا شېرزي د خپل کار په دفتر کښي د ايران د اسلامي جمهوريت د سرقنسل شيخ احمد زين الدين سره په کتنه کښي د بيا ودانولو پر مسئلو وږغېد. او د ايران د سوو مرستو څخه يې مننه وکړه.

❁ ۴ شنبه د سلواغې ۷ مه :

کندهار والي گل اغا شېرزي د کندهار او هرات د ولسواليو د خلکو د استازو سره د منډيگک په ماڼۍ کښي وکتل. په دې کتنه کښي ښاغلي شېرزي د اداري سمون، قانونيت او د امنيت تر څنگ اهل کسانو ته د کارونو سپارلو په اړه وږغېد.

وروسته پر سيمه ايزو ستونزو خبري وسوې او د هوارېدو له پاره يې ژمنه ورکړه سوه.

۴ شنبه د سلواغې ۷ مه :

د سهیل لوېدیځ سمت د ملي پولیسو د روزنیز مرکز څخه ۱۷۳ تنه ساتونکي فارغه او د کندهار والي ګل اغا شېرزي په وړاندې د یوې درنې غونډې په ترڅ کښې برې لیکونه ورکړه سوه.

❊ ۵ شنبه د سلواغې ۸ مه

د ولایت مقام اداري غونډه د ولسمشر د سلاکار وزیر او کندهار والي ګل اغا شېرزي په مشرۍ د ټولو ادارو د مسئولینو په ګډون د منډیګک په ماڼۍ کښې جوړه سوه. په پیل کښې ښاغلي شېرزي د قانون د لاس برې په اړه وینا وکړه. وروسته د راسته استرنګ موټرانو د راوستلو په اړه د ګمرک ریاست ستونزې وڅېړل سوې. او په رسمي وخت کښې د ډاکټرانو د خاني کتنځیو او د وخت څخه د تېر او جعلي درملو د مخنیوي په اړه تر غور وروسته پرېکړې وسوې.

❊ شنبه د سلواغې ۱۰ مه

د کندهار ښار اوشاوخوا سیمو کښې د ډاډمن امنیت د ټینګښت له پاره د کندهار والي ګل اغا شېرزي په مشرۍ د امنیتي ارګانونو او اړوندو ادارو د مسئولینو غونډه د منډیګک په ماڼۍ کښې جوړه سوه. ښاغلي شېرزي امنیتي ستونزې په ګوته او د منځه وړلو لارې یې وړاندې کړې. همدا ډول د ۲۰۵ ملي اردو قومندان جنرال محمد مسلم عامر ته لارښوونه وسوه چې د ملي دفاع وزارت ملکیتونه دې د مځکو د قبضه کوونکو د منګولو څخه وژغوري.

❊ ۴ شنبه د سلواغې ۱۴ مه

په کندهار کښې د پانګې اچوني او سوداګرو پر ستونزو د غور کولو له پاره د ولسمشر د سلاکار وزیر او کندهار والي ښاغلي شېرزي د منډیګک په ماڼۍ کښې د ملي سوداګرو سره وکتل.

ښاغلي شېرزي د هغوی څخه د راسته لاس استرنګ د موټرانو د نه راوړلو غوښتنه وکړه، هغوی د سوداګرو څخه وغوښتل چې پانګې اچونې ته پراختیا ورکړي.

❊ ۴ شنبه د سلواغې ۱۴ مه

د ښاروالۍ ریاست شمال ته مارکېټ به په لوړه توګه د سره جوړېږي. دغه ټکی کندهار والي ګل اغا شېرزي د ښاروالۍ د غونډو په لویه خونه کښې د دغه مارکېټ د دوکاندارانو سره څرګند کړ. هغوی ته اوس د لنډ مهال له پاره بل ځای په پام کښې دی او دلته به د لوی سړک د ایستلو تر څنګ عصري مارکېټ جوړ سي.

همدا ډول د ولسمشر سلاکار وزیر او کندهار والي د غونډې په لویه خونه کښې د جایکا مؤسسې له مسئولینو سره د همدې سړک پر لارو چارو وږغېد. دا سړک به د شاه اغا له دوه لارې څخه پیل د سرکاري بڼ څخه تېرېږي او د ۲۶ کیلو مترو په اوږدوالي د مورچې کوتل پورې رسیږي.

❊ ۴ شنبه د سلواغې ۱۴ مه

د ولسمشر سلاکار وزیر او کندهار والي ګل اغا شېرزي د شاه جوی او تورک تر منځ د زیاتې واورې د اورېدنې له امله د هغو مسافرو سره چې د ډېرو ورځو راپدېخوا هلته بند پاته دي لیدنه وکړه، پر هغوی یې خوراکي توکي او پیسې ووېشلې او د هغوی څخه یې ۲۰۰ تنه د بېلو موټرانو په واسطه کندهار راورسول.

❊ ۵ شنبه د سلواغې ۱۵ مه

په کندهار کښې د ولایتي بیا رغوني د دفتر لخوا د فواید عامې ریاست له پاره پنځه عرادې بار وړونکي موټران او درې عرادې بیلدوزران د فواید عامې په ریاست کښې د ولسمشر سلاکار وزیر او کندهار والي ښاغلي ګل اغا شېرزي ته وسپارل سوه چې په کور ودانې سره ومنل سوه.

❊ ۵ شنبه د سلواغې ۱۵ مه

د ولایت اداري غونډه د ولایت د مرستیال محمدانس خان په مشرۍ د منډیګک په ماڼۍ کښې جوړه سوه چې په معروف ولسوالۍ کښې د اوبو د بند د سروې او د هغه په اړه د ستونزو پر هوارې او هم د وخت تېرو او جعلي درملو د پر مخ بندولو په اړه خبرې وسوې او وړ پرېکړې رامنځته سوې.

❊ ۲ شنبه د سلواغې ۱۹

د امنیتي شورى غونډه د کندهار د والي ګل اغا شېرزي په مشرۍ جوړه او په لړ کښې یې د امنیت د ډاډمنېدو په اړه هر اړخیزه خبرې وسوې او وړ پرېکړې تر لاسه سوې.

❊ ۲ شنبه د سلواغې ۱۹ مه

د ولایتي جرګې نوبتي غونډه د جرګې د مرستیال عبدالمجید بابي په مشرۍ د ښاروالۍ د غونډو په لویه خونه کښې جوړه سوه او په اوږدو کښې یې د اوبلن ګاز پر بیه خبرې وسوې، او پرېکړه وسوه چې انادره ګی ونډېتون (شرکت) به اوبلن ګاز بازار ته یو کیلو په ۲۶ افغانۍ ورکوي. او د بازار پلټنه به ښاروالۍ ریاست په کلکه او پرله پسې توګه سرته رسوي. دا بیه به په هرو ۱۵ ورځو کښې تر غور لاندې نیول کیږي.

❊ ۲ شنبه د سلواغې ۱۹ مه

د کندهار د دوهم نمبر قول اردو د درو نورو قطعو لکه په سنځري کښې (۵۳)، مه لوا، ۴۶۶ مه کوماندو لوا اود

هواري گارنېزيون لوا کښې ۴۷۶ تنه د ملکي کولو د بهير سره يو ځای سول او په پايله کښې يې ۳۳۵ ميله کوچنی او غټې وسلې راټولې سويدي. اوس د دوهم قول اردو په سلو کښې ۹۸ برخې لغوه ځرگندي سوي دي.

❁ ۳ شنبه د سلواغې ۲۰ مه :

د ولسمشر سلاکار وزير او کندهار والي گل اغا شېرزي په پاکستان کښې د سويډن هيواد د سفيري سره د منډيگک په ماڼی کښې وکتل. ښاغلي شېرزي په کندهار کښې د پرمختگونو په اړه معلومات واورول. د سويډن هيواد سفيري د ښوونې او روزنې او بشري مرستو په برخه کښې د خپل هيواد د چمتووالي څخه ښاغلي شېرزي ته ډاډ ورکړ.

❁ ۳ شنبه د سلواغې ۲۰ مه :

د اتمې پلې فرقې ۱۱۲۴ تنه منسوبين د ملکي کولو د بهير سره يو ځای او ۹۷۶ ميله سپکې او درنې وسلې يې د وسلو ټولولو اروندانو ته وسپارلې.

❁ ۴ شنبه د سلواغې ۲۱ مه :

کندهار والي گل اغا شېرزي د عامې روغتيا د رئيس او په کندهار کښې د نړيوال روغتيايي سازمان د مسئول ډاکټر شاه ولي پوپل او د يو شمېر نورو روغتيايي چارو د مسئولينو سره په کتنه کښې د روغتيايي مؤسسو، روغتونونو او کلينيکونو پر ستونزو وږغېد او تر وسه يې هغوی ته د مرستې ژمنه ورکړه.

❁ ۵ شنبه د سلواغې ۲۲ مه :

کندهار والي گل اغا شېرزي د ښکاپر دروازې د هټی لرونکو سره د دوی په سيمه کښې د ماسټر پلان د پلي کېدو په موخه د منډيگک په ماڼی کښې په داسې حال کښې وکتل چې کندهار ښاروال عبدالله پوپل او د ښار او کور جوړولو رئيس انجينر ننگيالی هم حاضر و. په غونډه کښې د سيمو خلکو د ماسټر پلان د پلي کېدو څخه ملاتړ ځرگند کړ.

❁ ۵ شنبه د سلواغې ۲۲ مه :

د ايران د اسلامي انقلاب د ۲۶ مې کليزې د لمانځنې په غونډه کښې چې د ايران د قنسلگرۍ لخوا جوړه سوې وه د ولسمشر سلاکار وزير او کندهار والي گل اغا شېرزي سربېره ملکي او پوځي چارواکو او همدارنگه ولسي مشرانو او علماوو او د ملگرو ملتونو د مؤسسو مسئولينو او سياسي نماينده گيو استازو سره يو ځای د نوي ښار په خوشبخت سالون کښې برخه واخيسته.

په غونډه کښې ښاغلي شېرزي د دواړو هيوادو پر تاريخي اړيکو رڼا واچول، او د افغانستان د بيا ودانولو په لاره کښې يې د ايران د مرستو مننه وکړه.

په غونډه کښې د ايران قنسل شيخ زين الدين هم په خبرو کښې د خپل هيواد د نورو مرستو ژمنه وکړه.

❁ ۵ شنبه د سلواغې ۲۲ مه :

د ولايت په اداري غونډه کښې چې د ولايت مرستيال محمدانس په مشرۍ د منډيگک په ماڼی کښې جوړه سوه په ارغنداو ولسوالۍ کښې د شاه اشرف ښوونځي ودانۍ چې د سواردا انجو لخوا جوړه سوې او ځرنگوالی يې ډاډمن نه وُ پر چارو يې نيوکه وسوه او د هغه تر څنگ د ظاهرشاهي کانال په اوږدو کښې د خپل سرو ورخونو د مخنيوي په اړه او همدارنگه د ارغنداو ـ ترنک او ارغسان د رودونو پر مخ د ريگرېښونو د لېرې کېدو په اړه تر غور او خبرو اترو وروسته پرېکړې وسوې.

❁ يکشنبه د سلواغې ۲۵ مه :

د امنيتي شورۍ غونډه د کندهار والي گل اغا شېرزي په مشرۍ د منډيگک په ماڼی کښې په داسې حال چې د ولايتي جرگې رئيس احمدولي کرزي، د باندنيو اړيکو مسئول خالد احمد پښتون، د ولايتي بيا رغوني مسئول او د امنيه قومندانۍ د امنيت آمر جنرال محمدسالم احساس هم حاضر و جوړه سوه او په ترڅ کښې يې د امنيت د لا ټينگښت په اړه پرېکړې وسوې.

❁ ۲ شنبه د سلواغې ۲۶ مه :

د ولسمشر سلاکار وزير او کندهار والي گل اغا شېرزي د ولايتي جرگې د رئيس احمدوالي کرزي او غړو سره او همدارنگه د ښار د کسبگرو، ديني عالمانو، سپين ږيرو او ښځو د استازو په پراخه غونډه کښې گډون وکړ.

چې په لړ کښې يې د بيا ودانولو، ماسټر پلان د پلي کېدو او په دولتي ادارو کښې د سمونونو له پاره د هغوی سلامشورې واورېدې.

❁ ۲ شنبه د سلواغې ۲۶ مه :

په ۱۳۸۴ کال کښې د کندهار ښار د سمسورتيا له پاره د ښاروالۍ په رياست کښې د دغه رياست، پلان، کرهنې او مالدارۍ، اوبو لگولو د رياستونو او ډبليو ـ ايف ـ پی، او وارا د مؤسسو د استازو تر منځ په جوړه سوې غونډه کښې ځرگنده سوه چې وارا مؤسسه به د ۱۲۰ زرو نيالگيو مرسته کوي او د ښاروالۍ رياست به ۴۰ زره نيالگي د ۱۴

دولتـي ادارو پـه مرسـتـه د ښـار پـه بېلابېلـو برخـو کښـې کښېږدي.

❁ ۲ شنبه د سلواغې ۲۶ مه :

د ولسمشر سلاکار وزير او کندهار والي د ظاهرشاهي ليسې د زده کړيانو په ذهني سيالي کښې د برخه اخيستني تر څنګ د هغوی ستونزې هم واورېدې.

د سيالۍ په پای کښې دوو تنو زده کړيانو ته د هغوی لخوا د سرو زرو تنګې ورکړه سوې، هغوی په دې کتنه کښې د ليسې کتابتون او د انټرنيټ کوټې هم پرانستې.

❁ ۳ شنبه د سلواغې ۲۷ مه :

کندهار والي د سپين بولدک په دوه لاري او د سردار مددخان په څلور لاري کښې د څلو د جوړېدو له کار څخه کتنه وکړه او هغوی وويل د ودانېدو وروسته به د خلکو لخوا نومونه ورباندي کښېښوول سي.

❁ شنبه د کب لومړی.

د حسن حسين د مياشتي لسمه په کندهار کښي د امام باړې په جومات کښي د يوې پراخي غونډې په ترڅ کښي چي د کندهار والي ګل اغا شېرزي او د ملکي، پوځي او امنيتي خانګو چارواکو هم برخه پکښې لرله ولمانځل سوه. په غونډه کښـي د سنيانو او شيعه ګـانو مـذهبي مشـرانو د اړونـدي موضوع تر څنګ د اسلامي امت پر يووالي هم ټينګار وکړ.

❁ يکشنبه د کب ۲ مه :

امنيتي کميسيون د منډيګک په ماڼۍ کښي د ولايت د مرستيال محمدانس خان په مشري غونډه وکړه اود امنيت د لا ښه ساتني لاري چاري وڅېړل سوې.

❁ ۲ شنبه د کب درېيمه :

د ولايتـي جـرګې پـه غونـډه کښـي چـي د ښاروالـي د غونډې په لويه خونه کښي د جرګې د رئيس احمدولي کرزي په مشري جوړه سوه د برېښنا په اړه د خلکو د استازو ګيلې واورېدل سوې او پـه اړه يـې د برېښنـا رئيس انجينـر فضـل احمد د هغو د قناعت له پاره څرګندوني وړاندي کړې.

❁ ۴ شنبه د کب ۵ مه :

د عـامي روغتيـا وزيـر سـيد محمـدامين فـاطمي د کندهار په ميرويس روغتون کښي د دولتي او غير دولتي روغتيايي مؤسسو د مسئولينو سره وکتل. د روغتيايي چارو د پياوړتيا په اړه يې پراخي څرګندوني د خپلو خبرو په لړ کښي وړاندي کړې او بيا يې د دې روغتون بېلابېلي برخي وکتلې او د بستر ناروغانو پوښتنه يې وکړه.

❁ ۵ شنبه د کب ۶ مه :

د ولايت اداري غونډه د کندهار والي ګل اغا شېرزي په مشري د منډيګک په ماڼۍ کښي جوړه سوه.

په غونډه کښي د رودونو د مخ څخه د ريګ‌ړښتنو د ليري کېدو له پاره د ټاکل سوي پلاوي د څېړني څرنګوالی واورول سو.

بيا هغوی ته دنده ورکړه سوه څو د ښار دباندي ورته د ځايونو د ټاکني له پاره کار پيل کړي. همدارنګه په ۱۳۸۴ کـال کښي د نيالګيو د ايښودلو پر لارو چارو او د ښځو د نړيوالي ورځي د لمانځني له پاره تر هر اړخيزه خبرو وروسته پرېکړې وسوې.

❁ شنبه د کب ۸ مه :

کندهار والي ګل اغا شېرزي د منډيګک په ماڼۍ کښي د کاپيسا ولايت د مشرانو سره وکتل، د دواړو خواوو په خبرو کښي د ملي يووالي پر اړتيا پراخي خبري وسوې او بيا مېلمنو د ښاغلي شېرزي سره د کندهار د بيا رغوني کارونه وليدل.

❁ يکشنبه د کب ۹ مه :

امنيتي کميسيون د ولايت د مرستيال محمدانس خان په مشري په داسي حال کښي چي د اړوندو ادارو پر مسئولينو سربېره د ولايتي جرګې رئيس احمدولي کرزي، د ۲۰۵ ملي قول اردو قومندان جنرال محمدمسلم عامر حاضر وه د امنيت امر جنرال محمدسالم احساس امنيتي رپوټ وړاندي او د امنيت د لا ښه والي له پاره پراخي خبري وسوې او پر لاري چاري ورته وټاکل سوې.

❁ ۴ شنبه د کب ۱۲ مه :

د زرغوني انا د قبر د ودانۍ د جوړېدو او بيا رغوني د کارو څخه د کندهار د اطلاعاتو او کلتور رئيس عبدالمجيد بابي په داسي حال کښي چي د ولايتي بيا رغوني مرستيال هم ورسره ملګري ؤ کتنه وکړه.

ښاغلي بابي د کندهار مجلې خبريال ته وويل : دغه زيارت د ولايتي بيا رغوني د دفتر لخوا د ۱۱۰۰۰۰ امريکايي ډالرو په لګښت د ايګل د جوړونکي مؤسسي لخوا جوړېږي.

❁ ۴ شنبه د کب ۱۲ مه :

د دامان ولسوالي د ودانۍ د بنسټ تيږه د ولايت مرستيال ښاغلي محمد انس لخوا کښېښوول سوه. د دغه ودانۍ د ۱۴،۲ ميليونو افغانيو لګښت د ASP او APJ مؤسسو لخوا ورکړه سوی.

ASP د مؤسسې مسئول څرګنده کړه په پام کې لرو د پنجوايي او معروف ولسواليو کښې هم ورته ودانۍ جوړې کړو د ولايت مرستيال د هغوی د مرستې څخه مننه وکړه.
❀ ۵ شنبه د کب ۱۳ مه
د ولايت اداري غونډه د ولايت مقام د مرستيال محمدانس په مشرۍ د منډيګک په ماڼۍ کښې جوړه سوه.
چې د ډاکټرانو د ټولنې لخوا د درملو د راوړلو د لايحې وړاندې ليکنه واورول سوه. چې پرېکړه وسوه د غونډې غړي دې پر هغه غور وکړي او خپلې کتنې دې و بلې غونډې ته د هغې د بشپړ منلو په موخه وړاندې کړي، او بيا پر يو لړ نورو موضوعاتو هم تر غور وروسته پرېکړې وسوې.
❀ ۵ شنبه د کب ۱۳ مه
د اطلاعاتو او کلتور رئيس عبدالمجيد بابي لخوا خبر ورکړل سو چې د ميوند ولسوالۍ کښې د خواجه احمد حسن ميوندي د زيارت څخه درې پلې ۲۴۴ کلنې ډبرينې دروازې د سلواغې د مياشتې پر ۲۲ نېټه د شپې په تياره کښې کښې د ناڅرګندو کسانو لخوا وړل سوې دي.
هغوی وويل زه د ولسې مشرانو لخوا د خبر په راکولو سره هلته ولاړم او د نژدې مې د معلوماتو د تر لاسه کولو وروسته ولايت مقام ته د موضوع څخه خبر ورکړ.
❀ ۵ شنبه د کب ۱۳ مه :
د ولسمشر د سلاکار وزير او کندهار والي ګل اغا شېرزي لخوا په کندهار کښې د مرغانو او کبانو ښکار کول د هغوی د نسل د ورکېدو څخه د مخنيوي په موخه منع اعلان کړ.
د کندهار مجلې خبريال خبر راکوي : چې په دې وروستيو کښې مرغانو ته نشه راوړونکې توکي پاشل کېده او بيا نيول کېده او کبان په يو ډول بمونو باندې د منځه وړل کېده
خبريال زياتوي چې مخکې د دهلې په ډنډ کښې يو ډول غوماشې غوړونکې کبان هم وه چې د بده مرغه د هغوی نسل هم د ورکېدو د ګواښ سره مخ سوی دی.
❀ يکشنبه د کب ۱۶ مه :
د اروابناد پوهاند رشاد بابا د زيارت او ګنبدې د جوړېدو د بنسټ ډبره په داسې حال کښې چې د اطلاعاتو او کلتور رئيس عبدالمجيد بابي، د کندهار ولايت د فرهنګي شورۍ غړي، د پوهنتون رئيس، ګڼ شمېر استادان او فرهنګيان هم حاضر وه د کندهار والي ګل آغا شېرزي او د اطلاعاتو او کلتور د رئيس عبدالمجيد بابي په لاسونو په داسې حال کښې چې سخت باران اورېده کښېښوول سوه
په دې اړه د اطلاعاتو او کلتور رياست له لوري پراخه او درنه غونډه رابلل سوې وه چې د قرآن مجيد د څو مبارکو آيتونو تر لوستلو وروسته د اطلاعاتو او کلتور رئيس عبدالمجيد بابي د هغه اروابناد د لوړ شخصيت په اړه څرګندونې وکړې او د اروابناد د زيارت جوړونې په برخه کښې يې د ښاغلي شېرزي دغه پېرزوينه وستايل.
ښاغلي بابي د غونډې برخوالو ته زېرى ورکړ چې ډېر ژر به د اروابناد يادتون او د عکسونو ننداړتون هم چې تر ډېره د دوی په هڅو ورته کار سوی پرانستل سي. وروسته سلاکار وزير او کندهار والي ګل اغا شېرزي خبرې وکړې اروابناد رشاد بابا يې د دې وړ وګاڼه چې د هغه زيارت په لوړه کچه جوړ سي.
دا د هغه حق دئ او په دې لاره کښې ولسمشر هم ماته لارښوونه کړې او په دې برخه کښې زما لېوالتيا او مينه هم وه څو دا چارې تر سره سي.
هغوی وويل دغه ډول به زه د ملالۍ ميوندۍ قبر هم جوړوم.
په پای کښې استاد حيات الله رفيقي د موضوع په اړه خبرې وکړې. او بيا د ګنبدې د جوړېدو کار د ښاغلي شېرزي او بابي په لاسونو د پټې د پرې کېدو وروسته پيل سو.
❀ ۲ شنبه د کب ۱۷ مه :
د کندهار يو شمېر اوسېدونکو د سرې تېښتوونکو د شومو جنايتونو د غندنې په اړه په کندهار ښار کښې لاريون تر سره کړ. د بده مرغه د هغوی د پاکو ولولو څخه يو شمېر ورانکارو ناوړه ګټه پورته کړه او په پايله کښې يې د علماوو د شورى، مېرمنو ټولنې، هوټلونو، هټيو او متحده څواکونو د موټرانو ښيښې د ډبرو په ګذارونو سره ماتې کړې.
په اړه يې کندهار والي په راډيو ټلويزيوني پيغام کښې څرګنده کړه چې دغه لاريون د اصولو سره سم نه ؤ هغوی به دولتي چارواکي خبر کړي وای څو د هغوی امنيت نيول سوی وای او ورانکارو به د هغوی د لاريون د بدنامه کولو له پاره کار نه کولای.
هغوی وويل د ښاريانو د غوښتنو د اورېدو له پاره زما دروازه د هغوی پر مخ پرانستې ده. هغوی کولای سي خپلې غوښتنې تر ما پورې راورسوي.

❊ ۳ شنبه د کب ۱۸ مه.

د ښځو نړیواله ورځ د مېرمنو ټولنې لخوا په ځانګړو مراسمو سره ولمانځل سوه. په دې غونډه کښې سلاکار وزیر او کندهار والي ګل اغا شېرزي، کندهار ښاروال عبدالله یوپل، د اطلاعاتو او کلتور رئیس عبدالمجید بابي، د پوهنې رئیس محمد شعیب وفا، د ایران ـ پاکستان او هند جنرل قنسلاو ښوونکو او د روغتیا د برخې ښځینه نرسانو او ګڼ شمېر ښځو برخه واخیسته. په پیل کښې د مېرمنو ټولنې رئیسې صفیه عمه جانې خبرې وکړې ورپسې کندهار والي ګل اغا شېرزي د ښځو د ژوندانه د لا ښه والي او د هغوی د حقوقو د خوندي کېدو او پیاوړي کېدو په اړه خبرې وکړې.

تر نوزو ویناوالو وروسته ښځو ته برابر سوي سوغاتونه وویشل سوه.

❊ ۴ شنبه د کب ۱۹ مه:

د ولایتي بیا رغوني د ځانګي د مرستیال بلومکولیست لخوا د اطلاعاتو او کلتور رئیس عبدالمجید بابي ته د همدې ریاست د چارو د سمون له پاره د کمپیوټرانو، موټرسایکلانو، د برېښنا د جنراتور، چوکیو، دفتري مېزونو، بایسکلانو، کېمرو او د ثبت د ټیپونو مرسته ورکړه سوه چې د ښاغلي بابي لخوا په کوروداني سره ومنل سوه او د هغوی د دې پر ځای مرستې څخه مننه وسوه.

❊ ۳ شنبه د کب ۱۸ مه:

د کورنیو چارو وزیر ډاکټر علي احمد جلالي د ولسمشر د سلاکار وزیر او کندهار والي سره د کندهار پر امنیتي حالاتو خبرې وکړې.

د کورنیو چارو د وزارت ویاند لطف الله مشعل وویل ښاغلي جلالي د ولسمشر په لارښوونه کندهار ته راغلی او دلته به د کورنیو او باندنیو امنیتي مسئولینو او د خلکو د استازو سره وګوري. هغوی وویل د پرون ورځې په مظاهره کښې د ګډوډیو په اړه به هم څېړنه وسي.

❊ ۴ شنبه د کب ۱۹ مه:

د ښځو د لاسي کارونو ننداړتون د مېرمنو ټولنې په ریاست کښې پرانستل سو. د مېرمنو ټولنې رئیسې وویل دا ننداړتون به تر ۳ ورځو پورې پرانستی وي. کوم چې د صنعت په برخه کښې یې د یونیفام، هبیتات او یوناما مرستندویه مؤسسو مرسته کړېده.

❊ ۴ شنبه د کب ۱۹ مه:

د عبدالرحمن په نوم د سوداګرۍ ونډیتون (شرکت) د ولایت مقام د مرستیال محمدانس خان لخوا د ځانګړو مراسمو په ترځ کښې پرانستل سو. دغه شرکت به هېوادوالو ته د ودانۍ جوړولو او برېښنایي توکیو په برابرولو کښې په خدمت کښې وي.

❊ ۳ شنبه د کب ۱۸ مه:

د ولسمشر سلاکار وزیر او کندهار والي ګل اغا شېرزي د کورنیو چارو د وزیر ښاغلي علي احمد جلالي سره د خپل کار په دفتر کښې وکتل.

د کورنیو چارو وزارت ویاند لطف الله مشعل وویل: جلالي د ولسمشر په لارښوونه راغلی او د کورنیو او باندنیو امنیتي ارګانونو د مسئولینو او د خلکو د استازو سره به وګوري او د تېرې دوشنبې د ورځې په مظاهره کښې د ګډوډیو څېړنه به هم وسي.

❊ ۳ شنبه د کب ۱۸ مه:

د ښځو نړیواله ورځ د لسګونو ښځو په ګډون په داسې حال کښې چې ورته کندهار والي ګل اغا شېرزي او د او د مېرمنې ټولنې مشرې صفیې او نورو ویناوي وکړې ولمانځل سوه.

غونډې ته اداري چارواکي او د باندنیو سیاسي نماینده ګیو استازي هم راغلي وه، پر ښځو سوغاتونه هم وویشل سوه.

❊ ۴ شنبه د کب ۱۹ مه:

د ولایتي بیا رغوني د مرستیال بلومکویست لخوا د اطلاعاتو او کلتور رئیس عبدالمجید بابي ته د همدې ریاست له پاره د کمپیوټرونو، میزونو، چوکیو، کېمرو، وړو ټیپونو، بایسکلانو او موټرسایکلانو مرسته ورکړه سوه چې د کور وداني په ویلو سره ومنل سوه او لاسوندي یې یو او بل ته وسپارل سوه.

❊ ۵ شنبه د کب ۲۰ مه:

د اداري مجلس ناسته د ولسمشر د سلاکار وزیر او کندهار والي ګل اغا شېرزي په مشرۍ او د ټولو ادارو او مسئولینو په ګډون د منډیګک په ماڼۍ کښې جوړه سوه.

په غونډه کښې پر یو شمېر مسایلو سربېره د تیلو د بیې پر ټینګښت غور وسو او په اړه یې پرېکړه وسوه او ورته ۲۰ افغانۍ د یوه لېټر له پاره وټاکل سوه.

همدارنګه پرېکړه وسوه چې ولایتي جرګه دې هره دوشنبه د ښاروالۍ پر ځای په منډیګک ماڼۍ کښې غونډه کوي څو د دولتي چارواکو سره د هغوی ستونزې زما د لارې شریکې او د څنډ پرته هواري سي

❊ شنبه د کب ۲۲مه

د ښځو نړیواله ورځ د افغانستان د سوداګرۍ د نړیوال اتاق د سیمه ایز دفتر لخوا د لسګونو ښځو په ګډون په داسې حال کښې چې د ولسمشر سلاکار وزیر او کندهار والي ګل اغا شېرزي د ولایتي جرګې رئیس احمدولي کرزي، ځینې دولتي مشران او ملي سوداګر هم حاضر وه په خوشبخت تالار کښې ولمانځل سوه. غونډې ته د سوداګرۍ د نړیوال اتاق رئیس حمید قادري، کندهار والي ښاغلي شېرزي، جمیلې یوسفي او د ولایتي جرګې رئیس احمدولي کرزي وېناوې وکړې.

بیا جابر احمد په کندهار کښې د نړیوالي سوداګرۍ د اتاق د سیمه ایز دفتر په استازیتوب خبر وکړې، وروسته پر ځینو برخوالو او ښځو سوغاتونه وویشل سوه. د غرمې تر ډوډۍ وروسته د نړیوال سوداګرۍ اتاق د چارو په اړه حمید قادري د خبریالانو پوښتنو ته ځوابونه وویل.

❁ یکشنبه د کب ۲۳ مه :

د کورنیو چارو د وزیر ډاکتر جلالي په مشرۍ کندهار ته راغلی پلاوی بیرته کابل ته ستون سو.

د دې وزارت ویاند لطف الله مشعل په خبري غونډه کښې وویل : د امنیتي چارواکو او مؤظفینو څخه خلکو ګیلې درلودې چې غیر مسلکي کسانو پر شخصي او قومي بنسټ امنیتي ادارو ته لاره پیدا کړې ده څکه نو امنیت ګډوډ دی. هغه وویل په ملي پولیسو کښې تر اوسه پوازې ۴۰۰ تنه مسلکي زده کړه لري او پاته ۱۰۰۵ تنه پولیسې زده کړه نه لري.

هغه وویل کندهار اساسي او سیستیماتیکو اصلاحاتو ته اړتیا لري، امنیتي نظام امنیت نه سي خوندي کولای، هغه وویل وروستی مظاهره د خلکو د کړاوونو زېږنده وه.

❁ دوشنبه د کب ۲۴ مه :

د ولایت جرګې غونډه د اداري مجلس د پرېکړې سره سم د منډیګک په ماڼۍ کښې د دې جرګې د رئیس احمدولي کرزي په مشرۍ جوړه سوه. په غونډه کښې د ولایت مقام مرستیال محمد انس هم ګډون درلود، غونډې د اوبو پر موضوعاتو د دې ادارې د رئیس څرګندوني واورېدې. پرېکړه وسوه چې د خودسره ورخونو مخه دې ونیول سي، په دې اړه د ولایت مرستیال ژمنه ورکړه او د ولایتي بیا رغوني استازي د دغو ځایو د ور په نښه کولو غوښتنه وکړه. څو جوړېدو له پاره یې په کار لاس پوري سي. همدارنګه د حاجي عبدالله او محمد سوداګرو لخوا د تیلو د زرې زېرمي او باغ پُل کښې د پارکو له پاره د مځکو د رانیولو په اړه کندهار ښاروال څرګندوني وکړې پر قیمتونو او یو لړ نورو شرایطو خبري وسوې.

❁ سه شنبه د کب ۲۵ مه :

د ولایت مرستیال محمدانس د شاه حسین هوتک افغان ترک د لیسې د اړوندو چارو څخه د نژدې لیدنه وکړه.

❁ ۴ شنبه د کب ۲۶ مه :

د سهېل لوېدیځ سمت د ملي دیموکراتیک انستیتیوټ N.O.I دفتر په کندهار کښې د خانګړو مراسمو په لړ کښې پرانستل سو.

د دغه دفتر سره د امریکا، هالنډ او د امریکا د دیموکرات ګوند لخوا ملاتړ کېږي، چې په دغه غونډه کښې د سیاسي ګوندونو د نړیوالو چارو کارپوه کیټ سپیسن بیا په کندهار کښې د دې دفتر مشر حیات الله رفیقي بیا د امریکې د نړیوالي پرمختیایي ټولني USAID استازي، د هالنډ د سفارت استازي او د ولایت مقام په استازیتوب خالد پښتون خبري وکړې.

دغه ډول دفترونه چې په دیموکراتیکو ټولټاکنو کې د پوهېدو چاري مخته وړي، په کابل، بلخ، کندهار، کندز، ننګرهار، خوست، هرات او بامیان کښې هم جوړ سویدي.

### اخلاق وجدان او سپېڅلتیا

✿ له علوموا و صنایعو څخه زیات اخلاقو ته اړ یو .

✿ هغه څه چې یاست ښه دي معرفي کوي نه هغه څه چې وایاست یې .

✿ لږ صبر وکړه چې ژرنتیجې ته ورسېږې .

✿ که چیري موږ کوچنی غلطی پر ځان ومنو مانا یې دا ده چې له لویو غلطیو څخه ځان ژغورو .

✿ نیکي داسي شی ده چې وسله وال بې وسلې کوي .

✿ دوه مخي هغه سوغات دی چې د سپېڅلتیا له پاره خوسا او چټل شیان وړاندي کوي .

✿ کستمن هیڅکله اختر نه لري .

✿ غوړه مالي ویونکی او اوریدونکی دواړه بې لاري کوي .

✿ هغه څوک چې په لومړي ځل نصیحت ونه مني څه موده وروسته به پښېماني په لوړه بیه اخلي .

✿ قار لومړی لېونتوب دی، وروسته پښېمانتوب دی .

✿ کستمن د نورو له چاغوالي څخه ډنګرېږي .




# د اټک شمله

عبدالمجید بابی

د پښتني ليچو بنګړي د ماتېدلو نه وه
د پټ بګړۍ پر ديو پښو کښي د لوېدلو نه وه
د ژوند وروستيو شپو ته وژړېد تعظيم په چيغو
دا نازولي سا سينه کښي د شړلو نه وه
د لېونۍ ګناه بخر و لېوني کتل کړه
د سپېلني دوده يې سر کښي د ليدلو نه وه
د ثوابي ارمان کو ګل دوږخ لمبه ، لمبه کړ
د جنتي حوري جامه د څير ېدلو نه وه
هغه تندی چي د قسمت لمر يې سايه کي پايي
شپه يې د ستورو په ښايست د روښېدلو نه وه
ګامونه خپل مي د جنون په زولنو کښي اړ سوه
شناخته کوڅه کښي د بابا د ګرځېدلو نه وه
خضر ځنځير سپېڅلي لاس کښي د ښرا شرنګاوه
د ژوند چينه کښي نااهلان د ګډېدلو نه وه
د سومنات په اوبه پښو کښي زما ککره رغړي
دا د اټک شمله "**بابيه**" د داغلو نه وه

# Kandahár

*Bi-Monthly Magazine of Kandahar Information & Culture Department*




## اصلاح

آبادیږي په نیکۍ ښار د فلاح
نیکي بوله د جنت ورله مفتاح
نتیجه له ژونده عیش معنوي دی
عیش مونده شي که اول سي ځان اصلاح
ثمره و میوه ، وړه له دغه باغه
نوشوه یې په عمل د هر صباح
خدای دي نه کاچي مهمل ترې نه واړه شي
یا دو که نه کړې د بد فعل ارواح
له آزاره د کونینو خسران زیږي
د مظلوم ژړا که ورسي په نکاح
چي دي خوی د غریبانو قصابي سوه
نوشته که په تندي نوم د ذباح
هغه ورځ چي د حساب و منځ ته راسي
خلاصیږده بیا هلته نسته په الحاح
که میړه یې اوس لا ځان ور ته چمتو کړه
هر عبث او حرام مه بوله مباح
که په صدق ( بریالی ) و ځان ته وایې
پر دریاب د بیدارۍ ځان کړه ملاح